الله جل

# فتاوٰی ودودیّه

## جلدِ اوّل


مؤلّفه

محمّد ابراهیم بونیری بازارکوی

عُفِیَ عنه



چاپ شوی

په فیروزسنز پېښاور صدر پریس کښ

الله

# فتاویٰ ودودیہ

## جلدِ اول

مؤلفہ

محمد ابراهيم بونیری بازارکوی
عفی عنہ

چاپ شوے
پہ فیروز سنز پیشاور صدر پریس کښ

## "دَ فتاوٰی ودودیّه" دَمضامینو

# فهرست

**عرض حال:-** دا کتاب دَ "فتاوٰی ودودیّه" رومبنے جلد دے. لیکن دَ اشاعت په لحاظ سره دَ دے فتاوٰی دویم جلد مخکښے په کال سنه ۱۹۳۹ء میاشت اکتوبر کښے په حکم دَ سلطان العلوم اعلیحضرت بانیٔ ریاست سوات تقدّس مآب جناب عبد الودود صاحب چهاپ کړے شوے او شایع شوے وو. هغه جلد په معاملاتو مشتمل وو. او دا جلد په عباداتو. دَ مخکښے په شان دا جلد هم ماته دَ طباعت دَ پاره اعلیحضرت سلطان العلوم حواله کړو. دَ الله تبارک و تعالیٰ بے حده شکر دے چه دَ هغه په فضل و کرم سره دا جلد هم څما په اهتمام سره په ښه طریقه سره طبع شه.

حقیقت دا دے چه دا دَ والیٔ سوات او دَ بانیٔ سوات په پښتو ژبه او پښتون قوم باندے یو لوئ احسان دے. چه دَ دوئ په توجه سره دَ "فتاوٰی ودودیّه" غوندِ عِلمی مذهبی او فقهی کتاب په پښتو ژبه کښے قوم ته پیش کړے شته. زه امید لرم چه لکه څنګه دَ "فتاوٰی ودودیّه" دویم جلد چه دَ دوئ په توجه سره دَ "فتاوٰی قوم ټولو فهمیده طبقو او علمائے کرامو خوښ کړے او ستائلے وو. دغه رنګ به دا جلد هم مقبول شی. او بیا خصوصًا په دے لحاظ سره چه دا جلد په عباداتو مشتمل دے. نو هم مقبول عام شی. الله تعالیٰ دِ دَ دے لوئ عِلمی او دینی خدمت کما حقّهٗ اجر او نیکه بدله دَ والیٔ سوات او دَ بادشاه صاحب په دارینو کښے نصیب کړی. او دَ دوئ دا عِلمی سرچشمه دِ همیشه جاری وی.

وَیَرْحَمُ اللّٰهُ عَبْدًا قَالَ اٰمِیْنًا ط

هر کله چه دَ هر کتاب په اوّل کښے دَ هغه مضامینو فهرست درج کول ضروری او مفید وی. له دِ وجهے نه ما دَ دے کتاب فهرست مرتّب کړو. او دَ کتاب په اوّل کښے مِ شامل کړو.

چنانچه دا فهرست لاندے درج دے:-

# فهرست مضامین

# یاد کیږنه

د فهرست په آخر کښے دا ذکر نه صرف مناسب بلکه ضروری گنړم چه د "فتاوی ودودیه" مؤلف مولنٰنا مولوی محمد ابراهیم صاحب ابن حضرت مولنٰنا عبد المجید صاحب د فتاوی ودودیه د تدوین نه پس په قضائے الٰهی سره د شوقدر په میاشت کښے وفات شو۔ اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رَاجِعُوْنَ ط د مرحوم تاریخ وفات دا دے:۔ شپه د جمعة المبارک نځلسم د شعبان المعظم سنه ۱۳۷۰ھ په حالت د مرض کښے اعلیحضرت والئی سوات د دوئ د علاج په سلسله کښے قابل قدر مالی امداد کړے وو۔ او کوم وخت چه وفات شو نو اعلیحضرت بادشاه صاحب په خپل موټر کښے د هسپتال سیدو شریف نه د دوئ لاش "بازارگی بونیر" ته په قدر او احترام سره اولیږلو او د دوئ په تکفین تجهیز او مزار جوړولو کښے گرانقدر مالی امداد وکړو۔ مرحوم په آخری ورځو کښے یو منظوم مناجات لیکلے وو۔ او خپل والد صاحب ته ئے دا وصیت کړے وو چه دا نظم دِ په "فتاوی ودودیه" کښے ضرور شامل شی۔ او ماته ئے هم د خط په ذریعه دا ارشاد فرمائیلے وو چه ځما د وفات نه پس په فتاوی ودودیه کښے دِ ځما تاریخ وفات او لیکلے شی۔ له دے وجهے نه ما مخکښے د هغوئ د وفات او تاریخ وفات ذکر اوکړو۔ او لاندِ د هغوئ هغه منظوم مناجات هم درج کوم۔ الله تعالےٰ دِ د هغوئ مغفرت او خپل بے پایانه رحمت نصیب کړی۔ او اعلیحضرت والئی سوات دِ د علم پروری په وجه همیشه کامران او شادمان وی۔ آمین

# دُعاءِ مُناجات

مولوی محمد ابراهیم صاحب مرحوم ادخله الله فی الجنان بفضله وکرمه

اے خالق دَ کل جهانه   اے مولی غنی سبحانه   رحم کړے زیات دَ لهٔ جهانه   اے رحیمہ اے رحمانه

تهٔ په ماشے مهربانه

تهٔ باطن او هم ظاهرے   هم اول او هم آخرے   په هر شی باندِ قادرے   او قدرت دے بیشانه

ته په ماشے مهربانه

هر ذره دِ دَ صنعت   لوئے دفتر دَ معرفت   دلائل دِ دَ وحدت   بنهٔ محکم دی بے گمانه

تهٔ په ماشے مهربانه

تهٔ واجب الوجود   په هر ځائے کښے موجود   مجال نشته دَ جحود   بالائے دَ مکان او امکانه

تهٔ په ماشے مهربانه

قُل هُوَ اللهُ اَحَدٌ   هُوَ الفَرْدُ وَلَمْ یَتَّخِذْ وَلَدً   او سردار دَ رسولانو محمدؐ   صاحب دَ مرتبے دَ عالیشانه

تهٔ په ماشے مهربانه

حمونږ نبی دے پاک سرورؐ   حضرت خیر البشرؐ   لوئے شفیع دَ محشر   بهشت دے دَ هر چانه

تهٔ په ماشے مهربانه

په رگ رگ کښے م اسلام   بنهٔ نبوت دے مقام   څهٔ شاکر یمه مُدام   امان راکړه له شیطانه

ته په ماشے مهربانه

ته بادشاه ئے خود مختار   او نوم دِ دے غفار   څهٔ بندهٔ یم گنهگار   دا سوال کوم له تانه

ته په ماشے مهربانه

په ځنکدن م شی آغاز   او روح شی په پرواز   او چت م کړه آواز   په کلمے دَ شهادت سره گویانه

تهٔ په ماشے مهربانه

منکر نکیر چه پوښتنه   رانه او غواړی جواب   توفیق م مل کړه اصواب   چه رانه دواړه شی حیرانه

ته په ماشے مهربانه

نوی عالم ته یم روان   ډیر زیات یمه حیران   نه پوهیږم هیڅ په ځان   پروت یمه بے ځانه

ته په ماشے مهربانه

دَ گناه عزم دے په سر    څۀ عاصی يم سراسر    څۀ رنګ به طے شی دا سفر    خو مدد وکړه مستعانه

نۀ په ماشے مهربانه

نۀ شهنشاهی بالیقین    مونږه ټول يو مساکین    په تحقيق سره اياک نستعين    مدد غواړو خاص له تانه

نۀ په ماشے مهربانه

څۀ اګر که ګنهګار يم    خو دَ شرک نه بيزار يم    ستا له فضله اميدوار يم    او بې بريمه دَ خطانه

نه په ماشے مهربانه

دا عرض لرمَ تا ته    که ونه کوړې ته ما ته    نو او وايمه بل چا ته    خدائے نشته بے له تانه

نه په ماشے مهربانه

لحد مې کړه پرنور    په خپل رحمت سره معمور    او روح مې کړه مسرور    چه مناسب وی ستا له شانه

نه په ماشے مهربانه

چه صاحب وی دَ حيات    ورته پېښيږی واقعات    خو پکار دے لوئ ثبات    صبر دِ غواړی له مولانه

نه په ماشے مهربانه

که په غم وکړی فرياد    خپل وخت به کړی برباد    نه حاصليږی هيڅ مراد    بے رضا علی القضائه

نه په ماشے مهربانه

زۀ محمّد ابراهيم    دَ مُدے نه يم سقيم
جړا کوم لکه يتيم    په خپل تقصير يمه پښيمانه
نه په ماشے مهربانه

---

مولوی مدار الله مدار مُدير اخبار "نوائے ملت" مردان

مورخه :- ۲۰ جنوری ۱۹۵۲ء

(په کتابت دَ فضل ودود کاتب او سيد ونکے دَ برتا کال پېښاور ختم شو)

الله

# فتاوی ودودیہ

## جلد اول


مؤلفہ

محمد ابراهیم بونیری بازارکوی

عفی عنه



چاپ شوے

په فیروز سنز پیشاور صدر پریس کښې

# تقریظ

مونږ دا کتاب ملاحظه کړ - واقعی چه دا د پښتون قوم د پاره ډیر مفید او ضروری دے - جناب مولانا مولوی محمد ابراهیم صاحب معلم د اعلیحضرت بادشاه صاحب دامت برکاتهم په ډیر کوشش او په تحقیق سره د معتبرو کتابونو په حواله نهایت صحیح صحیح او ضروری مسائل په عام فهمه سلیسه پښتو کښ لیکلی دی - او د اسلام یو عظیم خدمت ئے په بے نظیره طریقے سره سره انجام کړے دے - فجزاهم الله تعالیٰ فی الدارین خیرا ط

مونږ دعا کوو چه حق تعالیٰ دِ د بانی صاحبِ ریاست سوات او د والی صاحبِ ریاست سوات ومتعلقات خلد الله ملکهٔ وحکومتهٔ مراتب په دواړو جهانو کښ بلند کی - او دا حکومت دِ تا ابد الآباد قائم او دائم لری - چه د عوامو فائدهٔ او آسانی ئے همروخت منظور نظر ده -

نقیب خان بهادر مانړونکی کان الله لهٔ صدر مدرس دارالعلوم حقانیه سیدوشریف (ریاست سوات)

عبد المجید بازارکوی کان الله لهٔ مدرس 〃 〃 〃 〃

عبد الحلیم هو ټیکرائی عفی عنه 〃 〃 〃 〃

محمد نذیر چکیسری رحمه ربهٔ 〃 〃 〃 〃

عنایت الله چکیسری عفی عنه 〃 〃 〃 〃

عزیز الرحمٰن عفی عنهٔ ساکن قمبر استاد شهزاده جوان بخت وجوان سال عالیحضرت میانگل اورنگزیب خان صاحب ولیعهد ریاست سوات ومتعلقات دام اقبالهم

محکمهٔ عالیهٔ قضا جامع مسجد سیدوشریف

عبد الغنی عفی عنه متوطن لوټکی عفی عنه قاضی القضاة ریاست سوات ومتعلقات

محمد شیر زاده غفرلهٔ ساکن منګوره قاضی محکمهٔ عالیهٔ حضوری

محب الله غفرلهٔ ساکن قمبر قاضی 〃 〃

محمد عالم گل عفی عنه - مسجد ناصر خیل سیدوشریف قاضی محکمهٔ عالیهٔ حضوری

# دیباچه

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

دا حقیقت محتاج دَ بیان نه دے - چه حکومت سوات و متعلقات دَ اهل اسلام دَ پاره عموماً او دَ باشندګان ریاست دَ پاره خصوصاً دَ رحمتِ الٰهی یو مجسّمه ده - چه ډیر مخلوق ئے په حسنِ تدبیر سره دَ انتهائی پستئ نه اوچت کړے او دَ ترقئ اعلیٰ منزل ته ئے رسولے دے - دَ اعلیحضرت بادشاه صاحب محمد عبدالودود خان بانئ ریاست سوات وملحقات دامت برکاتهم شمار په هغه نامور حکمرانانو کښې دے چه هغوئ په دنیا کښې یو عظیم الشان اِصلاحی انقلاب پیدا کړے او دَ بناءِ حکومت په ذریعه دَ مخلوق خدا دَ وبیدا دَ کشتئ دَ نجات غاړے ته رسولے ده - لیکن دَ بادشاه صاحب دَ حکمرانئ ابتدائی او انتهائی او درمیانی مجموعه حالاتو ته یو امتیازی شان حاصل دے - که زه وایم چه تاریخ عالم دَ هغه نظیر نشی پیش کولے نو بے ځایه نه ده -

۱ :- بادشاه صاحب دَ هغه کشمکش او دَ اضطراب په زمانه کښې دَ حکومت سنګ بنیاد ایښے چه په هغه وخت کښې دَ امن او دَ اِصلاح نوم اخستل یو سنګین جرم وُ - دَ خلقو حالت داؤ - چه شپه او ورځ دَ باهمی جنګ و جدال او حرب و قتال شعلے اوچتیدے - دَ ډاکه زنی رهزنی - خونریزی ګرم بازاری وه - ظلم و ستم - جبر و تشدد - قبضهٔ غاصبانه - تحکم جابرانه - قتل و غارت - مغلوب قبائل دَ علاقے نه شړل - دَ خپلے کورنئ او ټبر نه محروم کول - نن دلته صبا هلته - دارنګ دربدر خاک بسر ګرځیدل - نه دَ خدائے او دَ رسول دَ احکامو څه پرواه - نه دَ شریعت لحاظ - نه سکون نه آرام - نه چین نه اطمینان هغه تباهی او بربادی چه الامان - الامان - الغرض دَ هغه وخت انسانیت سوز او حسرتناک واقعاتو آوریدلو دَ پاره هم یو سخت زړه او آهنی ځیګر پکار دے -

تازه خواهی داشتن گر داغهائے سینه را[1] گاهے گاهے بازخوان این قصه پارینه را

۲ :- دا تائیدِ ربّانی او فضلِ یزدانی وُ - چه اعلیحضرت بادشاه صاحب تر بے زجیرو استنبذ

[1] ترجمه :- که دَ سینے داغونه تازه لرل غواړے - نو کله کله دا زړه قصه رایاده وه ۱۲۵ صفحه

نه په خپل قابلیت او حُسنِ تدبیر سره دَ قوم په اِصلاح - دجرائمو په انسداد - دَاحکام الٰہیّه په تنفیذ دَجهالت اَوْ دَغوایت په قلعه قمعه دَمظالمو او فتنو په استیصال کښې محیّرالعقول کامیابی حاصله شوه - دَ ترقئ جمله اسباب مهیّاشو - دَ منکراتو خاتمه وشوه - او دا قوم په مهذّبو قومونو کښې یادکړے شو - بِحَمدِاللہ دَریاست په طول وعرض کښې دَ امن وامان او دَ عدل و انصاف هغه نظام قایمُ شو - چه دَ هغے نظیر به شاذو نادر موندے شی -

| | |
|---|---|
| ہے دیارِ سوات میں وہ عدل وہ امن وامان | ایک جا پیتے ہیں پانی بکری و شیر و ببر |
| چپّہ چپّہ پر مسرّت بن گئی فصلِ بہار | گلستانِ ملک میں گلپاش ہے ہر اک شجر |
| یا خدا ان کو ہمیشہ شاد رکھ آباد رکھ | فضل تیرا ان پہ ہو سایہ فگن شام و سحر |

بارگاہِ حق تعالیٰ میں بہ صد عجز و نیاز
بس کہ ابراھیم کی ہے یہ دعاءِ مختصر

۳ :- عاقبة الامر بادشاه صاحب دَ پنځه شپیته[له] کاله په عمر کښې دَ علمِ عربی تحصیل شروع کړ - وُس شرحِ جامی او نفحۃ العرب وائی او سلسله دَ تعلیم ئے په ذوق وشوق سره جاری ده - دَ استادئ شرف مے دَ خدائے پاک په فضل سره دے فقیر ته حاصل دے -

په دسمبر سنه ۱۹۴۹ء کښې بادشاه صاحب بِخپله رضا دَحکومت دَکاروبار نه کلیةً دستبرداری وکړه - او دَ اعلیحضرت محمّد عبدالحق جهان زیب خان والی ریاست سوات ومتعلّقات دَ تاجپوشئ تقریب په شرعی او قانونی طریقے سره اداکړے شو - دَحکومت تمام انتظامات او اختیارات شپږ کاله مخکښے هم والی صاحب ته دَ ولیعهدئ په زمانه کښې تفویض وو - لیکن وُس په مستقله طریقه سره والی حکومت وکړځید - او بادشاه صاحب دَحکومت دَ جمله تعلّقاتو نه یکسوئی اختیار کړه - حتّٰی که دَ هغوئ خپله خرچه او دَ خپلے عملے ټول مصارف هم دَ خپلے ذاتی جائداد او دَ عین المال نه کوی -

مونږ دعا کوو چه ربّ العزت دِ دَ بادشاه صاحب مدارج په دواړو جهانو کښې بلند کی - او مونږ ته دے هم دَ هغوئ په نقشِ قدم باندے دَ تللو توفیق راکی -

## دَغازئ مِلّت والی صاحبِ سوات دَحکومت برکات

دَ اعلیحضرت سلطان بن سلطان محمّد عبدالحق جهان زیب خان
والئ ریاست سوات ومتعلّقات خلّد اللہ ملکهٗ وحکومته

---

[له] دا څلور لوے قصیدے بعضے اشعار دی - دَ بحرِ رمل مثمّن نه (دقافیه مثنِ ارک) ۱۲ منه

په حسنِ انتظام او کمالِ اهتمام سره چه ریاستِ سوات و متعلقات دَ ترقئ کوم مدارج طے کړی دی او کوی - باخبره حلقه دَ هغے نه په ښه شان سره خبر داره ده دَ والی صاحب عدل و انصاف - تدین و تقوی - حق شناسی - رعایا پروری - خدا ترسی - همدردی - اعانت مظلوم وغیره وغیره مسلّم الثبوت اوصاف دی حتی الامکان ئے دَ رعایا دَ آرام و راحت دَ پاره جمله اسباب او دَ هغوئ دَ ترقئ دَ پاره قسم قسم ذرائع مهیا کړی دی - او دَ رعایا دَ آسایښ فکر ئے هر وخت دامنګیر دے - دغه وجه ده - چه دَ ریاستِ هٰذا باشندګان په کامل امن و امان سره دَ آرام واطمینان ژوند تیره وی - او هر سړے دَ خپل مشفق و مهربان سلطان په تعریف کښ رطب اللسان دے - او دَ هغوئ په یوه اشاره ئے ابرو باندے قربانیدل دَ ځان دَ پاره سعادت د دارینو ګنړی -

دَ خوشامدے او دَ مبالغے نه بالکل اوچت او واقعی حقیقت دے - څوک چه په سترګو کښ بصارت او په زړه کښ بصیرت لری - او یوه پیره دَ حق بینئ په نګاه سره دَ ریاستِ محروسهٔ هٰذا نظم و نسق تهذیب و تمدن - طرز معاشرت انتظامِ حکومت - دَ راعی او رعایا تعلقات او نور حالات ملاحظه کی - نو په دعوے سره وایم چه بے اختیاره به ئے دَ خولے نه دَ تحسین او دَ آفرین نعرے وخیژی - دَ دے مدعی په اثبات کښ دَ دلائلو او دَ واقعاتو انبار لګید ے شی - لیکن دا ځائے دَ تفصیلی بیان نه دے - خو بیا هم مناسب دی چه دَ والی صاحب یو څو کارنامے دَ مثال په طور دلته قلمبند کړم -

۱ :- دَ ریاست په هره علاقه کښ ئے یو یو سکول قائم کړے دے او په بعضو بعضو علاقو کښ ئے دوه دوه او درے درے هم جاری کړی دی - اوس په ریاست کښ یو هائی سکول - څلور ۴ مډل سکولونه - دولس ۱۲ لوئر مډل سکولونه - دیرش ۳۰ پرائمری سکولونه موجود دی - تعلیم بالکل مفت دے - دَ طالب علم نه هیڅ قسم له فیس آخستل نشته - اوس په تعلیم باندے تقریباً درے نیم لکهه روپئ صرف کیږی - بلکه دَ سکولونو دَ قیام سلسله په ریاست کښ تر اوسه پورے جاری ده - والی صاحب اراده کړے ده چه دَ ریاست دَ آمدنئ لس فیصدی حصه یعنے سالانه پنځه لکهه روپئ به صرف په تعلیم باندے صرف کیږے شی - او دَ کال نه زیاته عرصه وشوه په سیدو شریف کښ هائی سکول نه نن دے دَ انټرمیډیټ کالج دَ افتتاح دَ پاره یو وسیع - خوشنما پخته دو منزله عمارت زیر تعمیر دے

غالباً دوه کاله پس به اِختتام ته ورسی - او صرف به په عمارت به دوه لکهه روپۍ صرفه راشی -

۲ :- مخوابه دَ عربي علومو دَ تحصیل دَپاره پښتانه طالبان هندوستان ته تله - دَ تعلیم په دوران کښې به ئې قِسم قِسم تکالیف برداشت کول - نو والی صاحب په خپل ریاست کښې دَ بادشاه صاحب په مشورے سره دَ یو لوئې دینی درسګاه اِفتتاح وکړه - دَ ریاست چیده چیده علمائے کرامو ئې په مسندِ تدریس مقرر کړه - دَ مدرسے نوم دَ والی صاحب نامِ نامی ته منسوب دے - یعنے مدرسهٔ عالیهٔ عربیه دارالعلوم حقانیه ئې دے مدرسه کښې دَ تفسیر - حدیث - فقه - اصول فقه - فرائض - نحو - صرف - ادب - معانی - بیان - منطق - حکمت - هندسه - هیأت - وغیره وغیره دَ کل فنون عربیه وُ تعلیم په مکمله طریقه سره ورکیږی - دَ اهلِ ریاست نه علاوه دَ نورے نورے وطنونو طالبان هم دَ دے چشمهٔ فیض نه سیرابی حاصلوی - او کال په کال تقریباً دیرش تنه سند دَ فراغت آخلی - دَ فوقانی شعبے یو وسیع دیده زیب عمارت سنټرل هسپتال ته نژدے واقع دے - واقعی چه دَ والی صاحب په زړه کښې دَ مخلوقِ خدا دَ هر قسم امراضو دَ علاج کولو جذبه ده - مرض جسمانی وی او که روحانی او هر قِسم اصلاح ئې مدّ نظر ده - دنیاوی وِی او که اُخروی -

۳ :- دَ سرکونو قابلِ تعریف وسعت او اِستقامت ئې راوسته دے - او حسبِ ضرورت ئې نوی نوی سرکونه ایستلی دی - مضبوط سنګین پلونه ئې تړلی دی - دَ پلونو پخته کولو سلسله تر اوسه پورے جاری ده - دَ سرکونو په تعمیر باندے په تیرشوؤ شپږو کلونو کښې څوارلس لکهه روپۍ خرچ شوی دی - وُس کوهستان ته سرک شروع دے په هغے به تخمیناً دوه لکهه روپۍ صرف کیږی - او دور دور دراز مقاماتو ته دَ روزانه ډاک سلسله باقاعده جاری ده -

۴ :- په سیدو شریف کښې دَ شفاخانهٔ حیوانات او دَ زنانه هسپتال نه علاوه یو سنټرل هسپتال دے - یو هسپتال په بونیر کښې واقع دے - بل نوے هسپتال په متهه کښې او یو په متین کښې - بل په کړدپه کښې وُس وُس رغنشوے دے - دَ هسپتالونو سالانه خرچ تقریباً دوه لکهه روپۍ دے - او نور هسپتالونه هم زیرِ تجویز دی - دَ نادارو مریضانو دَپاره دَ خوراک څښاک مکمل انتظام سرکاری دے - بلکه قیمتی قیمتی دوائی هم مفت ورکولے کیږی - او دَ لاوارثه مړو کانو دَ ګور و کفن انتظام هم په

سرکاری طور سره کیږی۔

په سنه ۱۹۵۰ء کښې د دے کتاب په اختتام سره په ما باندے سل دق په دویمه حمله وکړه۔ په سنټینل هسپتال کښے داخل شوم۔ د ټی بی وارډ غریب مریضان م ولیدل چه د ټولو د پاره د سټیپټو مائی سین انجکشنو مکمل انتظام په سرکاری طور سره کیږی۔ بحمد الله خما علاج هم حسب سابق د حکومت عالیه په مهربانئ سره جناب ډاکټر غلام محمد خان صاحب په ښه شان سره وکړ۔ ډاکټر صاحب په خپل فن کښې ډیر ماهر او تجربه کار دے۔

۵:- د جهاد کشمیر په دوران کښې چه والی صاحب په کمالِ اشتیاق سره کوم فوجی او مالی امداد ورکړی دی۔ دُنیا تري خبر ده۔ په دے سلسله کښې د حکومت پاکستان د طرفه والی صاحب ته د غازی ملّت خطاب ورکړے شوے دے۔ او د حکومت پاکستان په وفادارئ کښې چه والی صاحب څو مره جذبه وجهد کوی۔ هغه هم د اهلِ اسلام نه مخفی نه دے۔

۶:- والی صاحب د جمعې موږ د سیدو باباصاحبؒ په عالیشان جمات کښې کوی۔ او پس د مانځه نه په فقرا غربا یتامی مساکینو معذورینو او په کُنډو ورنډو باندے کافی رقم تقسیموی۔ د ډیرے مودے نه ئے دا طریقه معموله ده۔ او د مستحقینو وظایف او روزینے هم باقاعده مقرر دی۔

۷:- د سلاړنو په یو څو کلو کښې د اُوبو ډیر قلت وُو۔ د هغه ځایځ او سیدونکو به د ګرمئ په موسم کښې د اوبو راوړلو د پاره په لرو را تللو کښې اوږده میله ناهمواره لار طے کوله۔ ظریف الطبع انسان به ویل چه په دے کلو کښې د خرهٔ په آواز موږ ماتیږی اوپه لوړو موسمونو کښې به ئے د ډنډو ونو او به څښلے۔ خپے ئے پېړے ملکدرے۔ وس والی صاحب د یو لکه روپو په لاګت سره ډکړا کړغنزه د ډیره چینے نه د آهنی نلونو په ذریعه هُونږ د بازار کې پورے اوبه راو رسولی دی۔ اوپه مینځ کښې ئے ځائے په ځائے مختلف آبادوله هم ورکړی دی۔ وُس د هغه ځائے انسانانو او حیوانانو ته صافے او شفافے اوبه هر وخت بے تکلیفه میسّرے کیږی۔ حیوانات په زبانِ حال سره او بندګان په زبانِ قال سره د والی صاحب ډیره ډیره شکریه ادا کوی

---

لہ مثلاً سړی خرا د بو له لیږلے وُو۔ موږ ئے ضرورةً په تیمم سره شروع کړه۔ بیائے په مانځه کښې د خرهٔ آواز داور ډیده۔ یو هم شه چه دا هغه ډے او به ئے راوړسولے۔ نو موږ ئے مات شه ۱۲ منه

۸ :- په سلازو کښې بامېوخه یوکلے دے چه ډادبو په نشتوالی کښې ضرب المثل وه۔ والی صاحب تقریباً ډ اته میله فاصله ډ رقم کثیر په خرچ سره ډ سیمټي لختي په ذریعه هغې ته هم اوبه رسولی دی۔ ډ بامېوخه او ډ هغې ډ ماحقاتو ضرورت پے بالکل رفع شوې او ډ عمرونو متل په یو دم کښې منسوخ گرځیدلے دے۔

۹ :- ډ والی صاحب عُمّال او حُکّام عموماً حق شناس او خدا ترس دی۔ خو بیا هم ډ مزید احتیاط ډ پاره کله کله هغوئ ته ډ مراعاتِ حق تاکید کوی۔ تحصیلدار صوبدار جمعدار وغیره ته پخپله ماموره علاقه کښې ډ اجارے او ډ رهن وغیره معاملے کولو سخت بندیز دے۔

۱۰ :- ډ عوامو ډ سهولت ډ پاره مفید احکام جاری کړے شوی دی۔ او ډ مقدماتو مکمل تحقیقات او په فصلِ خصومات کښې ډ رعایتِ حق پابندی کیږی۔ ډ والی صاحب حضور ته هر کس و ناکس حاضریدے شی۔ خپل فریاد کولے شی۔

۱۱ :- بعضے کسانو به ډ باهمی گفتگو په دوران کښې په یو بل طلاق غور ځول۔ چه ته طلاق واچوه۔ نو هغه به ناحق طلاق واچول۔ داخبره په ظاهره کښې معمولی ښکاریده لیکن شرعی وبال ئے ډ حد نه سوا وُ۔ دُس والی صاحب په دے خبره سخت جرم لگولے دے۔

۱۲ :- ډ هندوستان ډ بعضے متبرک مزاراتو په شان ډ پیر بابا صاحب علیه الرحمة په روضے بانده هم ډ شرک بادرالوتے وُ۔ بعضے زایرینو به ډ سلام ډ پاره غلاف په سر اچولے ډ مزار په خپو سر کیخود۔ غیر الله ته به ئے سجده وکړه۔ ډ دے مفسدے ډ انسداد ډ پاره والی صاحب سرکاری ملازمین مقرر کړه۔ وس مزار ته ډ سجدے کولو او ډ نورو مستقبحاتو سخت بندیز دے۔ البته په مسنون طریقے سره دُعا کوی او ځی۔

یو ځیره بعضے صاحبانو ډ نوکرانو ډ چنولو په غرض عرض وکه۔ چه مونږ به ډ مزارِ اقدس نه چاپیره جنگله جوړه کړو۔ نو والی صاحب اوفرمائل۔ زه کامل مُوحّید یُم۔ ډ کومے پورے چه پنجره پنجره نه وی تیاره شوے۔ نوکران به باقاعده ډیوټی ورکوی دا داسے ایمان افروزه جمله ده چه ډ پیر بابا صاحبؒ روح پُرفتوح به ځے هم پرے خوشحاله شوے وی۔

ډ جنازے په مانځه کښې ډ سجدے ډ نشتوالی اصل وجه هم داده۔ چه په هغې کښې

غیرالله ته دَ سجدے کولو سره مشابهت دے - الحمد لله څرنګ چه والی صاحب

څونږ دینوی اصلاحات منظور نظر کړُولی دی - دارنګ څونږ اُخروی اصلاحاتو

ته ئے هم کامله توجه مبذوله کړے ده - ے

شہ دعیب ئے دَ زمین په سر قلم کړو تمام    جهان مخے له لاړیشه په تعظیم وسلام

۱۳ - دَ پسرلی په موسم کښ خلق دَ پیر باباصاحب رح او دارنګ دَ سید وباباصاحب رح

زیارت له په کثرت سره راځی - په داسے ازدحام کښ دَ جیب تراشئ - مشت و

ګریبانئ - دهوکه ډمی وغیره وارداتو پیښیدلو امکان ډیروی - او ځینے ځینے دوکاندارانو

او دَ سرائے خاوندانو اولادی والو به هم کله کله زیاتے کاوُ - والی صاحب دَ دے ټولو

مفاسدو دَ انسداد دَ پاره دَ پولیس مکمّل انتظام کړیدے - ګویا وس دَ زائرینو دَ

پاره سفرهم حضر شه -

دا امثالو نه صرف دَ نمونے په طور ذکر شو - ورنه کوم کارونه دَ خیر چه والی صاحب

کړیدی - او کوی دَ هغے دَ تفصیلی بیان دَ پاره ډیر وخت او مستقل کتاب درکار دَے

نو زهٔ دا مضمون په دے شعر ختموم ے

داماں نګه تنګ وګل حسن تو بسیار    ګلچین بهار تو زداماں ګله دارد

دَ باباصاحب سوات نه دَ والی صاحب پورے دے خاندان عالی چه دَ مخلوقِ خدا کوم

خدمات کړیدی - رعایا په کمال عقیدت سره دَ هغے اعتراف کوی - لهٰذا مونږ دُعا کوو

چه رب العزت دِ دا حکومت دَ مسلمانانو دَ مفاد دَ پاره تاقیامِ قیامت قائم او دائم لری

آمین ثم آمین -

# حقیقت

عالم که منوّر رُخِ تابان دَ جهان زیب    ځکه ټول جهان دے ثناخوان دَ جهانزیب

بنا ئیږی چه تحریر په آبِ زر سره شی    هر هر کردار او هر فرمان دَ جهانزیب

اسباب دَ ترقئ ئے فراهم کړه له هر جنس    اقبال دَ ترقئ ئے شه په دوران دَ جهانزیب

دا عدل دا انصاف او دا امن دا امان    حقّا چه کرامت دے نمایان دَ جهانزیب

که دَ عیب په سترکه زے جهانبره کړے    پیدا به نکړے هم په شان دَ جهانزیب

له دا م دَ والی صاحب په نوم معنٰی ویلے ده - ځکه چه دَ عیب سره عین دے - او دَ زمین سره ئے دَ نو چه دَ عین په ځائے زے کیخودے شو زیب شو او چه منکښ تے جهان را وړے شه جهان زیب شه خلدالله ملکه وحکومته ۱۲ منه شه ترجمه :- لمن دَ نظر تنګه ده او کلونه ستا دَ ښائست ډیر دی - ستا دَ بهار ګلونه اتیرونکے دَ خپل لمنے نه ګیله لری ۱۲ منه شه ظاهری ترجمه ئے دا ده چه بدخواه سره ئے لرځی ګمرځی هم به دَ والی صاحب په شان خیرخواه پیدا نکړی - او دا ځائے ته ګرا ددَ والی صاحب په نوم معنٰی ده ځکه چه ستر ګے نه په عربئ کښ عین وائی او دَ زے نه مراد حرف زے ده او بره په لغت کښ کنارے ته او بنی جانب او کس جانب ته ویلے شی لکه په غیاث اللغات وغیره کښ راغلی دی - نو مطلب دا شه چه دَ عین په ځائے زے کیخودے شی او جهان اول ته راوړلے شی نو خاص جهان زیب نوم تے ظاهر یګی خلدالله ملکه وحکومته مولانا ابراهیم رح ۱۲

الله ﷻ دے په کونینو کښں دایم لری عظمت — اوتل دِ مقتدر لری خاندان دَجهان زیب

ابراهیم په دے چمن کښں تنهادے لب کشا

له هر طرف نه بلبلان دی غزل خوان دجهان زیب

# دُعا

بحرِ متقارب

وجودش چو رحمت بلا ریب شد — بدینوجه نامش جهان زیب شد

دبرا قدسش قابلِ بدیهست — محکِّ جباه صنا دید هست

چنان عدل گستر داندر جهان — که رشک میخورد روح نوشیروان

بود تا زمین و زمان را وجود — بود نجم اقبالِ او در صعود

دعاءِ براهیم شام و پگاه — همین است از بارگاهِ اِله

بهی خواه این دولت آباد باد — و بدخواهِ این ملک برباد باد

آمین

# ضرورت دَعلمِ دین اوباعثِ دَتالیف

کائنات دَعالَم په دوه قِسمه دی۔ یو قسم هغه دے چه دَهغے په وجود کښں دَانسان قدرت او اختیار له هیڅ دخل نشته۔ لکه وُنے۔ کَږې۔ غرونه۔ زمکه۔ آسمان۔ وریځ۔ باد۔ باران وغیره۔ دویم قسم هغه دے۔ چه دَهغے په وجود کښں دَ انسان قدرت او اختیار له دَخل شته۔ لکه ټوپۍ۔ لوښے۔ میز۔ کرسئ۔ موټر۔ ریل۔ جهاز۔ مکان۔ دکان وغیره او دا ښکاره خبره ده چه دَعالم هر یو شے خواه اول قسم وی یا دویم۔ هغه په څه نه څه فایدے او په حکمت او مصلحت باندے ضرور بالضرور مشتمل وی۔ او په دے کښں هیڅ شک نشته۔ چه انسان له ربُ العزت لویه بزرګی ورکړے۔ دے ئے اشرف المخلوقات کړے دے۔ او باقی ئے دَده دَ فائدے دَپاره پیدا کړی دی۔ وُس عقل سلیم او طبع مستقیم له فکر پکار دے۔ چه دَدنیا هیڅ شے دَغرض و غایت نه خالی نشسه۔ نو بنیادم چه اشرف المخلوقات دے۔ دے هم دَځه مقصد دَپاره پیدا شوے او که نه۔ دَده په تخلیق کښں څه حکمت او مصلحت شته او که نه۔ صرف دَپاره دَدے پیدا شوے چه وخوری و څکی۔ په دنیا کښں

ژوندون تیرکی۔ او لبس۔ نه هر گز نه۔ خدای پاک فرمائی ﴿أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ﴾ "اے ستاسو دا گمان دے۔ چه مابه تاسو اوعبث پیدا کړی یئ۔ او ستاسو رجوع به ماته نه کیږی" دا سے نه ده۔ بلکه انسان چه د کوم مطلب دپاره پیدا کړے شوے دے۔ حق تعالیٰ د هغے تشریح چپله فرمائیلے ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾ "ما جنات او انسانان صرف دخپلے عبادت او معرفت دپاره پیدا کړی دی"۔ مقصد دا دے چه دے خپل خالق او مالک او پیژنی۔ او دهغه دبندگئ او د طاعت په ذریعه سعادت د دارینو حاصل کی۔

نو هرکله چه د بنی آدم د پیدا ئیش نه مقصد دخپل رب معرفت او عبادت شو۔ او دا بے د علم دین نه نشی حاصلیدے۔ نو علم یعنے د دین ضروری مسئلے ایزده کول د هر مسلمان دپاره فرض شو۔ له دے وجے نه حضور نبی علیه السلام فرمائیلی دی "طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيضَةٌ عَلَىٰ كُلِّ مُسْلِمٍ وَمُسْلِمَةٍ" ۔ "طلب د علم فرض دے۔ په هر مسلمان سړی او په مسلمانے ښځے باندے"۔ او دا جمله هم مشهوره ده "اُطْلُبُوا الْعِلْمَ وَلَوْ بِالصِّينِ" "علم حاصلوئ۔ اګرکه په چین کښی وی"۔ د دے نه غرض دا دے چه د علم په طلب کښی اګرکه ډیر کړاؤنه او تکلیفونه پیښیږی هم نے مه پریږدئ۔ لیکن افسوس چه مونږ دا فانی دنیا مقصودی ګرځولے ده۔ او عالم بقا ته د توجه کولو نه بالکل غافل او بے پرواه یُو۔ اکثر خلق د دنیاوی اسباب معاش په تلاش کښی چه څومره جد وجهد کوی۔ د اُخروی سعادت او دائمی ژوند په حاصلولو کښی د هغے شلمه برخه هم نه کوی

او ډیره د شکریئے خبره ده چه بانی صاحب ریاست سوات او والی صاحب ریاست سوات و متعلقات څه رنګ چه حضور معاشرتی او تمدنی جانب د انتهائی پستئ نه اوج کمال ته رسولے دے۔ دا رنګ حضور روحانی تربیت او اُخروی ترقئ ته ئے هم کامله توجه منصرفه کړے ده۔ او د پښتون قوم د سهولت د پاره ئے هر ممکن قدم اوچت کړے دے۔

منجمله د هغے نه یوه خبره دا ده چه بادشاه صاحب د عوامی د آسانئ دپاره بعضے مفید کتابونه په آسانه پښتو کښی ډیر په آب وتاب سره چاپ کړی او شایعه کړی دی او په دے طریقه سره ئے د پښتو ژبے پرلوئے کے پوره کړے۔ لیکن د شرعی مسئلو یو دا سے جامع کتاب چه هغه د حنفی مذهب په ټولو ضروری مسئلو باندے مشتمل وی۔ په پښتو ژبه کښی نو تالیف شوے۔ او ضرورت ئے ډیر وُ۔ د دے وجے نه ما د دی

په حکم عالی سره دَ فتاوی ودودیّه آخری حصه اولیکله - او هر کله چه دَ هغې دَ تالیف نه وزګار شوم - نو دَ اولے حصے یعنې دَ حصهٔ عبادات په تالیف کولو ئے هم مامور کړم - دَ دے حکم په تعمیل کښې ما خپله سعیٔ پوره پوره صرف کړه - دَ خپل حنفی مذهب دَ معتبرو کتابونو او مستندو فتاوُونه م ضروری مسئلے را نوولے - او په عام فهمه آسانه ساده مروّجه پښتو کښې م بابًا بابًا ولیکلے - دا اَهَمْ کار سرته رسول دَ دے کمزورے دَ شان نه ډیر بعید وو - لیکن محض دَ خدائے پاک په فضل او په توفیق او په کرم سره اختتام ته ورسید - زه دُعا کوم چه رب العزت دِ دا کتاب په خپل مقدّس بارګاه کښې مقبول کړی - او څما دَ پاره دے ذخیرهٔ آخرت وګرځوی - آمین -

# دَ کتاب متعلق یو څو ضروری هدایات

۱ :- دَ دے کتاب مسئلے چه دَ کومو کتابونو نه اخستے شوې دی دَ هغې نومونه دا دی هدایه - درمختار - ردالمحتار المعروف بالشامی - فتاوی عالمګیری - فتاوی قاضیخان بحرالرائق - مبسوط - مجمع الانهر - درّالمنتقٰی - خلاصة الفتاوی - طحطاوی - رسائل الارکان - مراقی الفلاح - شرح الوقایه - کنز الدقائق - زیلعی - منیه - صغیری - کبیری وغیره -

۲ :- دَ هرے مسئلے حواله په حاشیه کښې باقاعده درکړے شویده - او دَ حوالے نه علاوه لوړے مفیدے خبرے او ضروری نکات او اشارات هم دَ مقام سره مناسب په حاشیه کښې ځائے په ځائے لیکلی شوی دی -

۳ :- دَ څینې څینې اهم مقاماتو ابتدا دَ آیات و احادیث په رنړا کښې دَ ترغیب وترهیب په مختصر مضمون سره کړے شوے - او اکثر احادیث دَ صحاح سِتّه نه او بعض دَ نور کتب حدیث نه را اخستی شوی دی - او دَ حدیث حواله هم په حاشیه کښې باقاعده درج ده -

۴ :- څینې مسئلے دَ دے قسم دی چه خلق دَ هغې په بابت کښې دَ عالِم نه پښتوس کول شرم ګنړی - حال دا دے چه دَ دین په کار کښې حیا نه ښکار - لهٰ دے وجے نه هوښیاران وائی په دے صورتونو کښې شرم کول په ځان ظلم دے - پوهے علمه انسان چه دَ عالِم نه پښتوس کوی او ځان نه پوهه کوی - بلکه وګے چه طعام ورته حاضروی او دے سَت کوی - بل مریض چه

معالجې نه دَخپل مرض بیانولو په وخت کښې پوره پوره حال نه وائی. یوه ورځ حضرت اسماءؓ
دَ نبی صلعم نه دَ نهرکو په بابت کښې تپوس کاؤ. نو دائے هم اووئیل یا رسول الله خدائ پاک
په حقه خبره کښې شرم نکوی. مطلب ئے داؤ چه دَدین په کار کښې حیا نشته. دَ دے
وجه نه زه تپوس کوم. الغرض دا قسم مسئلے حمونږ دَ مذهب په کتابونو کښې درج دی خو
په بیل بیل ځایونو کښې. او ما په دے کتاب کښې په خپل خپل باب کښې یکجائی ولیکلے دَ پاره دَ دے
چه په بعضے موقعو کښې استاد شاګردنه دا مضامین فی الحال ابزده کول مناسب نه ګنړی.
یا ورته دَ ځان له مطالعه کولو هدایت کوی. نو په دے طریقه کښې سهولت دے.

## احکام دَ شریعت

۵:- احکام[۱] جمع دَ حکم ده. او حکم په شریعت کښې دَ خدائ پاک هغه خطاب ویلے
شی. چه هغه متعلق دے دَ مکلّف بندګانو دَ افعال و اعمال سره. حکم په درے قسمه
دے. یو هغه چه په هغے کښې طلب[۲] دَ کولو وی. دویم هغه دے چه په هغے کښې طلب[۳] دَ
نه کولو وی. دریم هغه دے چه په هغے کښې تخییر وی. یعنے دَ کولو او دَ نه کولو اختیار ورکړے
شوے وی. نو په کوم حکم کښې چه طلب دَ فعل وی. هغه په څلور قسمه دے. فرض.
واجب. سنت. نفل. او په کوم حکم کښې چه طلب دَ ترک وی هغه درے قسمه. حرام
مکروه تحریمی. مکروه تنزیهی. او په کوم حکم کښې چه تخییر وی هغه یو قسم. مباح. نو
معلومه شوه چه دَ شریعت ټول احکام اته دی.

(۱) فرض هغه دے چه په دلیل قطعی سره ثابت وی. حکم ئے دا دے چه منکر ئے
کافر دے. او څوک چه ئے بے دَ عذر نه پریږدی هغه فاسق دے. او دَ عذاب مستحق.
فرض بیا په دوه قسمه دے. فرض عین او فرض کفایه. فرض عین هغه دے چه
کول ئے په هر یو بانده لازم دی. بے دَ عذر نه ئے پرېښودونکے فاسق او دَ عذاب
مستحق دے. لکه پنځه وقته مونځ او دَ رمضان روژے وغیره. او فرض کفایه هغه دے
چه کول ئے په هر یو بانده لازم نه وی. بلکه دَ بعضے کسانو په کولو سره هم دَ ټولو ذمه
خلاصیږی. او که یو تن هم ونکه. نو ټول ګنهګار شو. لکه مونځ دَ جنازے وغیره
(۲) واجب هغه دے چه په دلیل ظنی سره ثابت وی. حکم ئے دا دے چه څوک

---

[۱] حیض ۱۲　[۲] توضیح تلویح ۱۲　[۳] یعنے متضمن وی طلب نره حقیقةً یا حکماً ۱۲ منه
[۴] مولوی ۱۲

ئې بې دَ عذر او بې دَ تاویل نه ترک کوی۔ هغه فاسق او دَ عذاب مستحق دے۔ او منکر ئې هم فاسق دے کافر نه دے۔

(۳) سنت په دوه قسمه دی۔ سُنتِ هُدیٰ۔ او سنتِ زائده۔ سنتِ مؤکده ته سنتِ هدیٰ وئیلے شی۔ او هغه هغه دی چه نبی صلی الله علیه وسلم پے مواظبت کړے وی په طریقه دَ عبادت۔ او بے دَ عذر نه ئې هم کله کله پریخے وی۔ او که پریخی نه وی نو په پریخودونکی ئې زجر نه وی کړے۔ دَ سنت مؤکده حکم دا دے چه څوک ئې بے دَ عذر نه پریږدی هغه صرف دَ ملامتیا مستحق دے گنهگار نه دے۔ او څوک چه ئې عادةً پریږدی هغه گنهگار دے۔ او سنت څرنګ چه دَ نبی صلعم په فعل سره ثابتیږی دَ خلفاءِ راشدینو په فعل سره هم ثابتیږی۔ او سنت زائده هغه دی چه په نه کولو کښی ئې څه بدی او کراهت نه وی۔ لکه دَ نبی علیه السلام عادات مبارکه شو۔ په لباس او په ناسته ولاړه کښی وغیره۔ دَ دے قسم حکم دا دے چه په نه کولو کښی ئې گناه نشته۔ او دَ متابعت په خیال ئې کول ثواب دے۔

(۴) نفل هغه فعل دے چه دَ هغې په غوره والی باندې یو قسم دلیل راغلے وی۔ او نبی علیه السلام پے مواظبت نه وی کړے۔ حکم ئې دا دے چه په کولو کښی ئې ثواب دے او په نه کولو کښی ئې څه عقاب او عتاب نشته۔ او مندوب۔ ادب۔ تطوع۔ فضیلة مستحب هم دَ دے قسم نه کوزولی شوی دی۔

(۵) حرام هغه دے چه په دلیل قطعی سره ثابت وی۔ حکم ئې دا دے چه منکر ئې کافر دے۔ او بے دَ عذر نه ئې کونکے فاسق او دَ عذاب مستحق دے۔

(۶) مکروه تحریمی هغه دے چه په دلیل ظنی سره ثابت وی۔ حکم ئې دا دے چه بے دَ عذر نه ئې کونکے گنهگار دے۔ او منکر ئې هم فاسق دے لکه دَ واجب منکر چه فاسق وی۔

(۷) مکروه تنزیهی هغه دے چه نه کول ئې بنه وی۔ او په کولو کښی ئې څه گناه او عتاب نه وی۔ مکروه تنزیهی حلال ته نزدے وی۔ او مکروه تحریمی حرام ته۔

(۸) مباح هغه فعل دے۔ چه په کولو کښی ئې ثواب نه وی۔ او په نه کولو کښی ئې څه بدی نه وی۔

ﻫ :- دَ مذهبونو خاوندان څلور امامان دی۔ چه دَ هغوی مذهب په اسلامی دنیا کښی

---

۱ یعنی دَ دے قسمه دے ۱۲ منه — ۲ شامی ۱۲ — ۳ نور الانوار ۱۲ — ۴ در و شامی ۱۲ — ۵ مولوی ۱۲

خوارہ شوی او مقبول شوی دی۔ امام اعظم ابوحنیفہؒ۔ امام مالکؒ۔ امام شافعیؒ امام احمد بن حنبلؒ۔ دی خپل ژوند ونہ دَ علوموپہ خدمت کښں او دَ فقہی مسئلو پہ اجتہاد او استنباط کښں تیر کړے۔ او پہ کمال عرق ریزئ سرہ ئے دَ اسلام عظیم الشان خدمات انجام کړی دی۔ دَدی پہ مینځ کښں شرعی اصولی اختلاف هیڅ نشتہ۔ خو پہ فروعو کښں ئے اجتهادی اختلاف راغلے دے۔ او دَ هر یو مقلدان پہ هرہ زمانہ کښں پہ کثرت سرہ موجود وُو۔ او وس هم شتہ۔ لیکن دَ امام اعظم صاحبؒ مذهب دَ ټولونہ فوق دے۔ او کوم مقبولیّتِ عامّہ او جاذبیّتِ تامہ چہ حنفی مذهب تہ حاصل شوے۔ هغہ نورونہ نہ دے نصیب شوے۔ صرف دَ امام اعظم صاحبؒ مقلدان یُو۔ دَ هغہ مرتبہ دَ نورو امامانو نہ لویہ دہ۔ لہ دے وجے نہ پہ امام اعظم سرہ مشهور شوے دے۔ مناسب بہ وی چہ پہ دے مقام کښں دَ امام اعظم صاحبؒ او دَ هغوئ دَ صاحبینوؒ پہ مختصر حالاتو تبصرہ وکړے شی۔

دَ امام صاحبؒ دَ والد ماجد نوم ثابتؒ وو۔ پہ کوفہ کښں پیدا شوے وُ۔ دَ تجارت پہ ذریعہ بہ ئے ژوند ئی بسر کولہ۔ چہ عُمر ئے څلویښت کالہ شہ۔ نو رب العزت ورلہ پہ سنہ ۸۰ھ کښں یو ځوئ ورکہ۔ دَ هغہ نوم ئے نعمانؒ کیښود۔ او را تلونکے زمانے دَ امام اعظمؒ پہ لقب سرہ مشهور کہ۔ دَ امام صاحب نوم نعمانؒ دے۔ لقب ئے امام اعظمؒ او کنیت ئے ابوحنیفہ۔ لیکن دا کنیت حقیقی نہ دے۔ ځکہ چہ دَ هغہ ځوک ولد دَ حنیفہ پہ نوم سرہ موسوم نہ وُ۔ بلکہ دا کنیت دَ صفتی معنیٰ پہ لحاظ سرہ دے۔ یعنے ابوالملة الحنیفہ۔ پہ قرآن شریف کښں خدائی پاک مسلمانانو تہ خطاب فرمایلے وَاتَّبِعُوْا مِلَّةَ اِبْرَاهِيْمَ حَنِيْفًا ط نو ځکہ دَ امام صاحب دَ پارہ پہ دے نسبت سرہ دا لفظ غوره کړے شہ۔ دَ امام صاحبؒ دَ آغاز شباب پورے یو څو صحابہ کرام هم موجود وُو

انسؓ بن مالکؓ چہ دَ نبی علیہ السلام خاص خادم وُ۔ پہ سنہ ۹۳ھ کښں وفات شوے۔ او سهلؓ بن سعدؓ پہ سنہ ۹۱ھ کښں انتقال کړے۔ او ابو الطفیل عامرؓ بن واثلہؓ خو دَ سنہ ۱۱۰ھ پورے ژوندے وُ۔ لہ دے وجے نہ ځینو اکثر عالمان وائی چہ امام صاحبؒ تابعی وُ۔ حضرت انسؓ ئے لیدلے دے۔

امام صاحبؒ دَ فقہی تحصیل دَ متعدد اُستادانو نہ کړے وُ۔ خو اکثرہ حصّہ ئے دَ حمادؒ صاحب نہ وئیلے وہ۔ پہ نورو فنونو کښں ورتہ هم پورہ مهارت حاصل وُ۔ لیکن محسوسہ ئے کړہ چہ دَ شرعی تفصیلی احکامو استنباط او تدوین ډیر ضروری دے

له دے وجے نه یے کامله توجه دے جانب ته مائله کړه - اود فقهي مسئلے یے په کمال تحقیق وتدقیق سره په داسے مکمّله او آحسنه طریقه مستنبط او مدوّن کړے - چه د همغے په وجه امام صاحبؒ د آسمانِ فقاهت یو آفتاب عالمتاب وګرځید او مذهب ئے په مذهبونو کښې عالمګیر شهرت او مقبولیت او موند - اجتهاد - ذهانت باریک بیني - لطافتِ طبع - عبادت - ریاضت - استغنا - حق ګوئي استقلالِ مزاج وغیره وغیره د امام صاحبؒ مشهور و معروف اوصاف دي - په دے بابت کښې د تاریخ خاوندانو ډیر ډیر واقعات د هغوئ په سوانح کښې نقل کړي دي - خو دا ئے د تفصیل نه دے - سخاوت او فیاضي ئے هم مشهوره ده - د خپل تجارت په وجه د مال د طرف نه فارغ البال وُ - په کمال دیانتدارئ سره به ئے معامله کوله - او د علماءِ کرامو او د مشائخو عظامو وظائف اوروزینے ئے د خپلے خزینے نه مقرر کړے وے - او د نورو غریبانانو او د مستحق طالبانو امداد به ئے هم په راسپنئ سره کاوُ او اکثرو له ئے وظائف مقرر کړي وُ -

په سنه ۱۳۲ھ کښې د بني اُميّه د خلافت خاتمه وشوه - او آلِ عباس د تاج وتخت مالکان شو - د دوي اول فرمانروا ابوالعباس سفّاح چه د څلورکاله حکومت نه پس په سنه ۱۳۶ھ کښې وفات شو - نو د هغه ورور منصور په تخت کیناست - هرکله چه منصور بغداد خپله دارالخلافه ګرځوله او په سنه ۱۴۶ھ کښې بغداد ته راغے - نو د امام صاحبؒ په نوم ئے پایۂ تخت ته د حاضریدو فرمان ولیږه - امام صاحبؒ د بني امیّه د تباهۍ نه پس د مکۂ معظمے نه راغلے په خپل وطن کوفه کښې مقیم شوے وُ - بغداد ته ئے تشریف ووړو - خلیفه ورته د قضا عهده پیش کړه - امام صاحبؒ صاف انکار وُکړو چه زهٔ د قاضي توب قابل نه یم - منصور غصه شه - وے وئیل ته دروغژن ئے - امام صاحبؒ وفرمائیل که دروغژن یم - نو دروغژن قاضي کیدے نشي - او که رښتیا یم - نو قابل نه یم په اصل کښې د حقوق العباد په سبب د قضا ذمه داري په زړانه ده - نو امام صاحبؒ د کمالِ خدا ترسئ په وجه دے درونه بار او چتولو ته تیار نه شو - منصور ډیر وفهریده - امام صاحبؒ ئے قید کړه - لیکن دا قید د نظربندۍ په شکل کښې وُ - لهٰذا په دے حالت کښې به هم طالبانِ کمال جوق درجوق راتلل او د امام صاحبؒ د درس او د فیضِ صحبت نه به ئے استفاده کوله - خو آخر چه هغه په ماهِ رجب سنه ۱۵۰ھ کښې په دغه حالت د قید کښې د قید نه ...

نه آزاد شه۔

او په بعضے تاریخونو کښې راوړی دی۔ چه منصور ته د امام صاحبؒ د طرفه اندیشه وه۔ ځکه چه منصور په ساداتو کرامو باندې بے انتها مظالم کړی وُ۔ او کول ئے نو ساداتو کرامو د هغه په خلاف آواز اوچت کړے وُ۔ نو دے پورے چه امام مالکؒ هم د دے په تائید کښې فتوی ورکړے وه۔ بیا چه سید ابراهیم علم د خلافت اوچت که۔ نو د نورو پیشوایانو مذهب په شان امام صاحبؒ هم د ابراهیمؒ تائید اوکه۔ ابراهیمؒ پُر زور مقابله وکړه۔ لیکن په بصره کښې شهید کړے شه۔ منصور ته غلبه حاصل شوه د دے نه بعد چه منصور امام صاحبؒ نظربند که۔ او د هغه په خدمت کښې د مخلوق د آمد ورفت سلسله وُرځ تر وُرځ زیاتیده۔ نو کومه اندیشه چه منصور ته پخوا وه اوس هم زائله نه شوه۔ آخر ئے تدبیر ئے دا شه۔ چه امام صاحبؒ له په بے خبرئے کښې زهر ورکړے شو۔ امام صاحبؒ چه د زهر اثر محسوس که۔ سجده ئے وکړه۔ او په دغه حالت کښې ئے جانِ شیرین جان آفرین ته وُسپاره۔ او روح مبارک ئے عالم قدس ته پرواز وکه۔ مزار مبارک ئے په بغداد شریف کښې تر ننه پورے زیارتګاهِ خاص و عام دے۔ رحمة الله علیه۔

په هغه زمانه کښې غالباً د اندلس نه سوا د اسلامی دُنیا یوه داسے کوټه نه وه پاتے شوے چه په هغے کښې د امام صاحبؒ شاګردنه وُ۔ شاګردان ئے په اطرافو اکنافو کښې موجود وو۔ او د هغه په تلمذ کښې ډیر کسان پایهٔ تکمیل ته رسیدلی۔ او غیر معمولی شهرت ئے موندلے دے۔ لیکن د فقهِ حنفی په تدوین کښې چه کوم کسان د هغه دست بازو وو۔ او په اکثرو مسئلو کښې د هغه د قول سره د هغوئ قول هم ذکر کیږیؒ۔ هغه دوه تنه دی۔ امام ابویوسفؒ او امام محمدؒ۔

## امام ابویوسف رح

قاضی ابویوسف صاحبؒ بنا بر اختلافِ اقوال په سنه ۱۱۳ھ کښې یا په سنه ۱۱۴ھ کښې په کوفه کښې پیدا شوے وَ۔ په زړه کښې ئے د ورکوټوالی نه د تعلیم حاصلولو جذبه وه۔ لیکن پلار ئے پرېنښود۔ هغه یو غریب سړے وُ۔ د مزدورئ او د محنت په ذریعه ئے ژوندون تیراوُ۔ هغه داغوښتله۔ چه ابویوسف صاحبؒ څه کسب او پیشه زده کی۔ چل دنیاوی کاروبار کوی۔ خو بیا به هم قاضی صاحبؒ چه فرصت موندو۔ د عالمانو په خدمت کښې به

ع اود اهم که امام صاحبؒ یو قول کښې شی ۔ ۱۲

سره ناسته ولاړه کوله - تعلیم به ئې حاصلاؤ - یوه ورځ دامام اعظم صاحبؒ په درس کښې ناست ؤ - پلار ئې راغۍ په زورئې پاساؤ - کور ئې ورته اووے - چې ابوحنیفهؒ لره خدائې پاک مال ورکړے دے - ته د هغه سره سیالی مکوه - نو قاضی صاحبؒ مجبوراً تلو ته پریښوو درے څلور ورځې پس امام صاحبؒ د خلقو نه تپوس ؤکه چه یعقوب ولے نه راځي نو هغه حاضر شه - ټول حال ئې بیان کړ - امام صاحبؒ ورله یوه تهیلۍ ورکړه - په هغې کښې سل روپۍ وے - دا ئې ورته هم اوویل چې دا ؤ لګی - ما خبر که - دغه شان به ئې وقتاً فوقتاً د هغه مدد کاؤ - تر دے پورے چې هغه په جمله فنونو کښې کمال ته ورسیده - اواستاد وخت وګرځیده - او خصوصاً په فقه کښې د امام په لقب سره یاد کړے شه -

په ۱۶۶ھ کښې ورله خلیفه مهدیؒ عباسی د قضا عهده ورکړه - د مهدی نه پس هادیؒ هم برقرار ؤساته - د هادی نه پس هارون رشید چې د هغه علمی کمالات نو ته وکتل - نو د ټول قلمرو د ټولو ممالک اسلامیه د قاضی القضاة ئې مقرر کړ - دا هغه عهده وه - چې د دغه وخت پورے په اسلامی تاریخ کښې هیڅ چا له نه وه ورکړے شوے - قاضی صاحبؒ چې په سررشتۀ قضا کښې د ترقۍ څومره څومره اوچت مدارج طے کړی دی د هغې بیان په دے پاڼو کښې نه شی کیدے -

آخر د زیارت ورځ وه - د ماسپښین وخت ؤ - پنځم تاریخ د ربیع الاول ۱۸۲ھ ئې جام د حیٰوة لبریز شه - او جوار د رحمت ته ئې انتقال ؤکه - ډیر دولتمند - خو دولت ئې استعمال ئې په کار خیر کښې کاؤ - د مرګ په وخت کښې ئې وصیت کړے ؤ - چې څلور لکه روپۍ دے د مکې معظمې او د مدینې منورے او د کوفې او د بغداد په فقیرانو تقسیم کړے شی - رحمة الله تعالیٰ علیه -

## امام محمدؒ

امام محمدؒ بن حسن شیبانی په ۱۳۵ھ کښې په واسط ښهر کښې پیدا شوے ؤ د سنِ رشد په آغاز کښې کوفے ته لاړ - د علومو تحصیل ئې شروع که - د لویو لویو محدثینو فقهاؤ او د مختلف ارباب فنونو په صحبت کښې ؤ رسیده - خصوصاً د امام اعظم صاحبؒ نه ئې په فقه کښې ډیره استفاده وکړه - او د امام اعظم صاحبؒ د وفات نه پس ئې باقی تکمیل د امام ابویوسفؒ صاحب نه وکه - بیائې په مدینه منوره کښې درے کاله د امام مالکؒ نه علیم حدیث اووے - د شلو کالو په عمر کښې ئې په مسند د درس کیناست - هغه او د هغوی لیاقت او جاذبیت ئې اوه وینه - ډیر تښتګان علوم د هغه د درسِ

فیض نه سیراب شو۔

هرکله چه هارون رشید دَ هغه دَ عظمتِ شان او علوِّ منزلت نه خبر شه۔ نو دَ قضا عهده ئې ورکړه۔ او اکثر ئې دَ ځان سره ساته۔ په سنه ۱۸۹ھ کښې رَے ته لاړ۔ نو دے ئې هم ملګرے کړه۔ رَے ته نزدے رنبویه نوم یو کلے دے۔ چه هلته ورسیدل۔ امام محمد صاحبؒ دا عې اجل ته لبیک او وے۔ او روحِ مبارک ئې دَ قفسِ عنصری نه عالمِ بالا ته پرواز وکړه۔ امام کسائی رح چه په علم نحو کښې امام تیر شوی دے۔ په دے سفر کښې دَ خلیفه ملګرے وُ۔ اتفاقاً په دغه سفر کښې په دغه مقام کښې هم انتقال وکړه۔ هارون رشید ته ډیره صدمه ورسیده۔ وئې وئیل۔ نن مونږ فقه او نحو دواړه دا ځائې دفن کړه۔

دَ امام محمد صاحبؒ په شاګردانو کښې نامور نامور عالمان تیر شوی دی۔ په دے سلسله کښې دَ امام شافعی رح نوم په خصوصیت سره قابلِ ذکر دے۔ هغه به وئیل چه ما دَ امام محمد صاحب[1] نه دَ اوښ دَ باره همره علم حاصل کړے دے۔ امام شافعیؒ صاحب بل ځائې تصریح کړے ده چه دَ امام محمد صاحبؒ مقبولیت دَ خلیفه په دربار کښې ډیره وه۔ نو زه به ورله تلم راتلم۔ په دَ وه کښې م اووے چه په فقه کښې دَ ده منه عوره نشته۔ نو دَ هغه نه م ... زده کړے او لیکلے۔ دَ امام محمد صاحبؒ علمی کمال دَ دے نه هم معلومیږی چه امام احمدؒ بن حنبل نه چا پوښتنه وکړه۔ تا دا باریکے مسئلے دَ کوم ځایه حاصل کړے۔ نو وے فرمائیل۔ دَ امام محمد صاحبؒ دَ کتابو نه۔ رحمة الله علیهم اجمعین۔

دَ دے بیان نه پس قابل ذکر خبره داده۔ چه فقهاءِ کرام دَ اختصار دَ پاره کله کله دا الفاظ استعمالوی۔ صاحبینؒ۔ شیخینؒ۔ طرفینؒ۔ نو دَ صاحبینؒ نه مراد امام ابو یوسفؒ صاحب او امام محمد صاحبؒ دی۔ او دَ شیخینؒ نه مراد امام اعظم صاحبؒ او امام ابو یوسفؒ صاحبؒ او دَ طرفین نه مراد امام اعظم صاحبؒ او امام محمد صاحبؒ۔ او دَ په کتابو په بعض بعضے مقاماتو کښې هم دا الفاظ راوړی شوی دی۔

۷:۔ هرکله چه ما دا کتاب اختتام ته ورساوه۔ نو دَ زیات تحقیق په غرض م دَ فاضلِ محقق و مدقق۔ ماهر معقول و منقول۔ حاوی فروع و اصول۔ حضرت علامة الدهر مولانا و استاذنا والد ماجد صاحب مد ت فیوضهم په خدمت کښې پیش که۔ الحمد لله هغوی سره دَ ډیرے نادِر کارے نه دَ دے کتاب مطالعه ...

---

[1] علامه نووی صاحبؒ چه شافعی المذهب دے۔ په تهذیب الاسماء واللغات کتاب کښې دَ دے روایت تصدیق کړے دے ۱۲ منه [2] توالی التاسیس یو کتاب دے په مصر کښې چاپ شوے دے دَ امام شافعی رح دا قول په هغے کښې ذکر دے ۱۲ منه۔

آخره پورې وکړه - نو د دعوې د هدایت په موجب د نورحقیقي مضامین زیات کړه - او د دعوې په نورمات د پوره پوره عمل وکه - جزاهم الله تعالیٰ فی الدارین احسن الجزاء

# العبـــــــــــد

حقیر فقیر - محمد ابراهیم بونیری - بانړکوی کان الله له ولوالدیه واحسن الیهما والیه

ابن

جناب مولانا مولوی قاضی محمد عبد المجید صاحب

مدرس دار العلوم حقانیه

واقع سیدو شریف ریاست سوات جمعة المبارکه کم ذی الحجه

١٣٧٩ھ

۴۱۳۰۰

مطابق ۶۱۳۸۰

بسم الله الرحمن الرحیم
الحمد لله رب العلمین والعاقبة للمتقین والصلوة
والسلام علی خیر خلقه نبینا وشفیعنا ومولانا محمد
وعلی آله واصحابه اجمعین

# کتاب الطهارت

**دَ اودس او دَ غسل فضیلت**

اودس دَ نورو اُمتونو دَ پاره هم وُ او که نه؟ په دے کښې اختلاف دے۔ بعض عالمان وائی چه نه وُ۔ بلکه دا دَ دے اُمّت خصوصیت دے۔ لیکن اکثر عالمان وائی چه دَ نورو دَ پاره هم وُ۔ البته دَ قیامت په ورځ چه به دَ اودس په وجه دَ اودس اندامونه پیرق کوی۔ او ځلیږی به۔ دا صفت په دے اُمّت پورے خاص دے۔

**حدیث** (شریف):۔ "کوم وخت چه مُسلمان اودس کوی نو چه مخ اینځی دَ سترګو ګناهونه ئے لرے شی۔ دَ اوبو سره۔ یائے فرمائیلی دی۔ چه دَ اوبو دَ آخری قطرے سره۔ بیا چه دواړه لاسونه اینځی۔ نو دَ لاسو ګناهونه ئے لرے شی۔ دَ اوبو سره۔ یائے فرمائیلی دی۔ چه دَ اوبو دَ آخری قطرے سره۔ بیا چه خپے اینځی نو دَ خپو ګناهونه ئے لرے شی دَ اوبو سره۔ یائے فرمائیلی دی چه دَ اوبو دَ آخری قطرے سره۔ تر دے پورے چه دے دَ ګناهونو نه پاک صاف وګرځی"۔

دا مضمون دَ صحیح حدیث دے۔ عالمان وائی چه په دے حدیث کښې دَ ګناهونو نه مراد صغیره دی۔ یعنی واړه ګناهونه۔ دَ سترګو ګناه۔ لکه پردئ

ا در مختار و شامی ۱۲ ۲ مشکوٰۃ شریف ۱۲ ۳ دا دَ راوی شک دے ۱۲

بنځې ته کتل۔ دَ لاس ګناه لکه په بد نیت سره ورګډول۔ دَ خپو ګناه۔ دَ ګناه په کار کښې ته مونه آخستل۔

**حدیث شریف**[1] :۔ حضرت انس رضه یو لوئ صحابي دے۔ لس[2] کاله ئې دَ نبي علیه السّلام خدمت کړے دے۔ په یو اوږد حدیث کښې وائي۔ چه نبي علیه السّلام ماته اوفرمائیل۔ " اے انس! دَ جنابت په غسل کښې مبالغه کوه۔ (یعنې غسل چه دربانده لازم شي۔ او لا مې په لمبلو کښې مبالغه کوه) بے شکه ته به دَ لمبلو دَ ځائ نه په داسے حال کښې راوځې چه هیڅ ګناه به په تا باندې پاتے نشوے " (دا ځائے هم دَ ګناهونو نه مراد صغیره دي)

انس رضه وائي۔ ما عرض وُکه۔ یارسول الله (صلعم) په غسل کښې دَ مبالغه کولو څه طریقه ده؟ نو وُئے فرمائیل طریقه ئے داده چه دَ ویښتو ویخونه بنه لمده کړه۔ او بدن بنه صفا کوه (دَ غسل په وخت کښې دَ بدن صفائي په ګکولو سره مستحب ده۔ ځکه چه بنه صفائي په دے سره راځي۔ نه صرف په اوبو آچولو سره) بیا نبي علیه السّلام انس رضه ته دَ شفقت په طور اوفرمائیل۔ " اے ځما بچو ریه۔ که ته هر وخت په اوداسه کښې وسیدے شے۔ نو ډیره بنه ده (دا هم مستحب دي) ځکه چه اودس په حالت کښې چه څوک مړ شي هغه دَ شهادت ثواب مومي " ختم شه مضمون دَ حدیث۔

| دَ اودس فرائض[3] | په اودس کښې څینے څیزونه داسے دي۔ چه دَ هغې نه که یو |
|---|---|

پریخودے شي۔ یا پکښې څه کمے راشي نو اودس نه کیږي۔ هغې ته رُکن او فرض وئیلے شي۔ او څینې داسے دي چه دَ هغې په پریخودلو سره اودس خو کیږي۔ لیکن په کولو کښې ئے ثواب دے۔ او په نه کولو کښې ئے عتاب۔ یو څوک چه ئے په عادت سره پریږدي۔ ګناهګاریږي۔ داسے څیزونو ته سنت وئیلے شي۔ او څینے هغه دي چه په کولو کښې ئے ثواب دے۔ او په نه کولو کښې ئے څه ګناه او عتاب نشته۔ هغې ته مستحب وئیلے شي۔

**مسئله**[4] :۔ بوځل[5] ټول مخ اینځل۔ یو[6] یوه پیره دواړه لاسونه سره دَ څنګ اینځل۔ یو وار دَ څلورمے حصے دَ سر مسح کول۔ یو یو وار[7] دواړه پښے سره دَ پښې

[1] ابو یعلیٰ ۱۲۔ [2] دا ځائے دَ اودس نه مُراد صرف چار انف ام دے۔ او دَ سنتجا بیان به دَ کتاب الطهارت په آخر کښې په تفصیل سره راشي ۱۲۔ [3] در مختار و رد المحتار ۱۲۔ [4] بدائع الصنائع في ترتیب الاحکام والشرائع ۱۲۔

اینځل د په اودس کښې فقط داخلول فرض دی - له دے وجے نه اودس ته چار اندام وینځلے شی - که په دے کښې یو پریخودے شی - یا پکښې د ویښته همره ځائ هم پاتے شه نو اودس نه کیږی -

**مسئله** [۱] :- د نخ احاطه په اوږدو د وچولی د برسرنه د زنے د لاندے پورے او په پلنی د یو غوږ د نرمے نه د بل غوږ د نرمے پورے ده - په دے احاطه کښې چه څومره حصه داخله ده - په اودس کښې د هغے اینځل فرض دی - هو د خولے او د پوزے او د سترګو دننه حصه اینځل نه دی فرض - البته د سترګو کونج نه اینځل او داسے بنده چه پخپل طبیعت شونډے ورو بسته دی - په دغه حالت کښې چه د شونډو کومه حصه په نظر راځی د هغے اینځل ضروری دی - نو چه څوک اینځی - سترګے او شونډے دے په سختئ سره نه وروځی -

**مسئله** [۲] :- کومه حصه چه د انګلی او د غوږ په مینځ کښې ده - او هغه کنپټی ویلے شی - د هغے اینځل ضروری دی - برابره خبره ده - چه د اودس کونکی بیره وی - او که نه - او که د ږیرو ویا د بریتو یا د ږیرے ویښته دومره زیات او ګڼ وو - چه لاندے څرمن نه ښکاریږی - نو د هغے څرمن اینځل نه دی فرض بلکه د ویښتو د پاسه اوبه بیول او د هغے اینځل کافی دی - بلکه ضروری - او که ږیره دومره اوږده ده - چه ښکته ځنګیږی - نو کومه حصه د ویښتو چه د نخ د حد نه بهر ده - د هغے اینځل ضروری نه دی - بلکه مسحه ئے سنت ده -

**مسئله** [۳] :- که د چا لاس د ګوتے نه بره بالکل پریکړے شوے وُ - یا ئے خپه بالکل پریکړے شوے وه - د پښکی نه پورته - نو د هغے اینځل خوبخود نشته - لیکن که د ګوتے نه کوز پرے کړے شوے وُ - نو د باقی کوټے حصے اینځل سره د ګوتے فرض دی - داسے که خپه د پښکی نه ښکته پریکړے شوے وه نو د پښکی اینځل او د هغے د لاندے باقی حصے اینځل فرض دی - او که لاس عین په ګوتے کښې پریکړے شوے وُ - یا خپه په پښکی کښې - نو د ګوتے او د پښکی څومره حصه چه پاتے ده - د هغے اینځل فرض دی -

**مسئله** [۴] :- که په نوکو نوکښے ګوره نختی او ویخ شوی وه - یا ئے په لاس

---

[۱] شرح التنویر و شامی ۱۲ - [۲] شرح التنویر ودر المختار ۱۲ - [۳] بحرالرائق ۱۲
[۴] منیه و غنیه ۱۲ -

وغیره چاولئ تخښیدلے وه - اودس ئے وُکه - بیائے ولیدل - نو چونکه دَ اوبو نه رسیدو په وجه اودس نه کیږی - لهذا هغه دے لرے کړی - او به دِ پرے واچوی - او که دَ اوبو اچولو نه مخکښې په دغه اودس مونځ کړے وی - هغه نه دے شوے - او که په څه ځائے دَ غوړو یا دَ ملکینو غل پخی وو - یا چیرے وُ - یا نکریزه یا تیل یائے په نوکونو کښې خیرے وُ - یا خاوره - نو په دے سره دَ اودس په کیدو کښې فرق نه راځی - خو ښه صفائی ښه ده -

**مسئله** :- دَ اودس کولو نه پس ئے څه ځائے وُچ ولیدل - مثلاً معلومه شوه - چه پو پوکے وُچ پاتے شوے دے - نو اوس دِ په دغه ځائے اُوبه واچوی - اودس ئے وُشو یعنی دَ هغے په وجه اودس نوے کول ضروری نه دی -

**مسئله** :- کوم خیزونه چه په اودس کښې فرض دی - که هغه اوشو نو اودس وشه - برابره خبره ده - چه نیت ئے دَ اودس کړے وی او که نه؟ لو که دَ ځان یخولو دَ پاره یا هسے دَ صفائیئ په غرض چا لمبل - په ټول بدن ئے اوبه واچولے یا حوض ته ټوپ وهی - یا اوغورزولے شه - یا باران لوند خوشت که - اودَ اودس په اندامونو ئے کافی اوبه وُلګیدے - نو هم ئے اودس وُشه - البته ثوابے نه دے شوے - ثواب هله کیږی چه بنده دَ اودس کولو نه مخکښې نیت هم وکړی دَ پاره دَ طاعت -

**دَ اودس سُنن** | په اودس کښې داخوارلس سنت دی - مخکښې دَ اودس نیت کول - بیا په شروع کښې بسم الله ویل - اول دواړه پاک لاسونه دَ مړوندو پورے اینځل - او درے ځله په ټوپونو او بو سره مضمضه یعنی خوله کنگالول مسواک وهل - درے ځله په ټوپونو اوبو سره استنشاق یعنی پوزے ته اُوبه اچول - په اودس کښې چه دَ کومو اندامونو اینځل فرض دی - په هغے درے درے ځله کافی اوبه اچول - دَ ګیرے خلال - یو ځل دَ ټولے پیرے په اوبو سره دَ ټول سر مسح - غوږونو مسح - دَ لاسونو دَ ګوتو خلال - دَ خپو دَ ګوتو خلال - ترتیب - ولاء یعنی پرله پسے وانځل -

**مسئله** :- که په چونګ کښې ئے او به راوا خستے - څه ئے ترے خوړے

---

سله درمختار وشامی ۱۲ سله تنویر الابصار ۱۲ سله شامی ۱۲ سله درمختار وشامی ۱۲ سله او که مجلس دی اینځل ئے واجب دی ۱۲ منه سله مضمضه او استنشاق دواړه سنت مؤکده دی - او په نورو سنتو پوره مشتمل دی - یعنی دریږه وانځل - دَ اوبو نوے والے او به په خپل لاس اچول ترتیب ۱۲ منه سله درالمنتقی

واچولے - څه پوزے نه - نو دا هم کافی کیږی - یعنے دَ اصل مضمضے او استنشاق سنت
پرے ادا شه - لیکن که مینه ئے تر پزے پورے نه واچولے - باقی ئے خولے ته نو دا دَ
مضمضے دَ پاره نه کافی کیږی - مستعملے شوے -

مسئله[1] :- که دَ اودس اُوبه ئے لږے وے - چه دَ مضمضے او استنشاق
سره ئے پرے صرف دَ اودس فرض ادا کولے شو - او بے دَ مضمضے او دَ استنشاق
نه ئے پرے دَ اودس درے واړه اندامونه باقاعده درے درے پیرے اینځلے شو -
سره دَ سر دَ مسح - نو اول صورت ورله غوره دے -

مسئله[2] :- مسواک دے په بره غاښونو هم وهی او په کوزو هم - په
دواړو طرفونو کښ دِ شروع کوی - دَ ښی جانب نه - او په هره پیره دِ مسواک لمدوی
او دَ نیولو سنت طریقه ئے دا ده - چه کچه او غټه گوته ترے لاندے وی - مینځنئ درے
پرے دَ پاسه - او مسواک دَ یوے لو لیشتے نه اوږد بنه نه دے - او پس دَ وهلو نه
دِ یو جانب ته ودروی - پریښتلے ایخودل ئے نه دی پکار -

فائده[3] :- په مسواک وهلو کښ ډیرے فائدے دی - څه دُنیوی او څه
اُخروی بعضے عالمانو ئے تقریبًا دیرش فائدے ذکر کړی دی - ادنٰی فائده ئے
بد بوئی لرے کیدل دی - او اعلٰی فائده ئے په ځنکدن کښ کلمهٔ شهادت
یادیدل -

مسئله[4] :- که مسواک نهٔ وی نو که چیرته هم دَ مسواک په ځائے کار د کولے
شی - او دا رنگ گوته هره یوه چه وی - خو دَ دواړو لاسونو په مسواکئ گوتو غوره
دے - یعنے مینه دِ دَ کس لاس په گوته دَ ښئ ړوے غاښونه اومږی - بیا دَ ښی لاس
په گوته دَ کسے ړوے غاښونه - او که ئے ذو بنه وی - نو مینه دے دَ ښی لاس په
غټه گوته دَ ښئ ړوے برنی او لاندینی غاښونه اومږی - بیا دَ ښی لاس په مسواکئ
گوته دَ کسے ړوے برنی او لاندینی غاښونه -

مسئله[5] :- که د بیره ئے لویه وه - نو چه څو درے پیرے وینځی - دَ دریمے
خلال دِ هم وکړی - غوره قول دا دے - چه سنت دے - لیکن که احرام ئے تړلے
وُ - بیا ورله مکروه دے -

---

[1] شرح التنویر و شامی ۱۲ [2] در مختار و شامی ۱۲ [3] در مختار و شامی ۱۲-
[4] یا دَ مسواک وهونکی غاښونه نور ۱۲- [4] در مختار و شامی ۱۲ [5] درالمنتقٰی ۱۲-

**مسئله**[1] :- دَټول سر دَ مسح طريقه داده - چه د دواړو لاسونو په ګوتو او په ورغوو اوبه واچوی - بيا درے درے ګوتے ورولی - يعنی خِنصَر - بِنصَر - وُسطیٰ اودَ سر په مخکنئ - مينځنئ حصه باندے ئے کيدی - اودَ دواړو لاسونو ورغوی سره دَ ابهامے اوسبابے ګوتے اوچت لری - نو دغه درے درے ګوتے دَ څټ دَ بر حده پورے په سر را کاږی - بيا دَ هغه ځائ نه دَ سر په دواړو ډډو دواړه ورغوی دَ مخے پورے راولی - بس دَ ټول سر مسح وشوه - بيا دِ دَ غوږونو مسح وکړی - دَ دننه حصے په سبابو اودَ بهرنئ حصے په ابهامو - او په بعضے[2] کتابونو کښ ئے دَ ټول سر دَ مسح دا طريقه غوره کړے ده - چه دواړه ورغوی دے سره دَ ګوتو دَ سر په مقدّمه حصه کيدی - نو دَ څټه غاړے ته دِ بوځی - په دے شان سره چه مسح دَ ټول سر وشی -

**فائده** :- په عربئ کښ څچے ګوتے ته خِنصَر وائی - در لپے ته بِنصَر - مينځنئ ته وُسطیٰ - مسواکئ ته سَبَّابَه - غټے ته اِبهَامَه -

**مسئله**[3] :- که دَ سر دَ مسح نه پس ئے پټکی یا ټوپئ وغيره له ګوتے ورورے مثلاً په ګوتوئے په سر سم که - اودَ غوږونو مسح ئے لا نه وه کړے - نو اوس به دَ غوږونو دَ مسح دَ پاره نوے اوبه اخلی -

**مسئله**[4] :- دَ ګوتو خلال هله سنت دے - چه ګوتونو ته اوګوتو ته اوبه بنے رسيدلی وی - اوکه دَ اينځلو په وخت کښ ئے ګوتے ورو سته وے - نو بيا ئے خلال فرض دے - دَ پاره دَ دے چه اُوبه وُرسی - او وُچ ځائ پاتے نشی -

**مسئله**[5] :- په قرآن شريف کښ چه دَ اودس دَ څلورو اندامونو کوم ترتيب ذکر دے - يعنی مخ اينځل - بيا لاسونه تر څنګلو - بيا دَ سر مسح - بيا ځپے اينځل تر ېړکو دا ترتيب هم سنت دے - نو که دَ دے ترتيب نه چا خلاف وُکه - مثلاً مينه ئے ځپے وينځلے - بيا ئے دَ سر مسح وکړه - بيائے لاسونه وينځل - روستوئے مخ - یائے يکښ بل شان تقديم تاخير راوست - نو اودس به وُشی - خو دَ سنت نه خلاف دے -

**مسئله**[6] :- په اوداسه کښ دَ وُروستی اندام اينځل یا مسح کول پخوا دَ وُچيدو دَ وُړمبی نه مسنون دی - اودے ته وِلاء وائی - نو که په مينځ کښ

---

[1] منيه ۱۲ [2] زيلعی ۱۲ [3] شرح المنيه ۱۲ [4] شرح التنوير ۱۲ [5] ملتقی الا بحر ۱۲
[6] تنوير الابصار ۱۲

ئے بے دَ عذرنه دومره ساعت تیر که چه په منځ اوچ شي۔ هلته ئے دویم اندام شروع که نو داخلافِ سنت دی۔ هاں که عذر وي۔ مثلاً اُوبه ئے ختم شوې وې۔ بیا خیر دے۔ او دا رنګ حکم دے دَ غسل او دَ تیمّم۔

**دَ اودس مستحبات او مکروهات**

په اودَاسه کښي دا ښځلس خبرې دَ مستحباتو نه دي۔ قبلے ته مخ کول۔ په اوچت ځائے کښناستل۔ پوزه په چپ لاس پاکول۔ که اَرته کوته ئے په لاس وه نو بیا پیره کرځول۔ دَ هر په موسم کښي دا اندام ایښلو نه مینځه لوند لاس تیرول۔ کوم اندام چه اینځي هغه مخکښي۔ (او بعضي وائي چه دا سنت دي۔) بے دَ ضرورت نه دنیاوي خبره نه کول۔ چه عذر نه وي نو په خپل لاس اودس کول۔ اودس په اطمینان سره کول۔ په ایښلو کښي ښه مینځه کول۔ دَ غټ مسح دَ غوږ مسح کولو په وخت کښي دَ غوږ سوري ته لمده ګوته ننبستل۔ خپے په چپ لاس ایښلل او اُوبه پرے په ښي اچول۔ دَ خپو دَ ګوتو خلال دَ چپ لاس په ګوته کول۔ دَ هر اندام ایښلو په وخت کښي بسم الله او کلمهٔ شهادت وئیل۔ او کوم دعاګانے چه منقول دي هغه لوستل۔

## فائده

دَ خولے کنګالولو په وخت کښي دا دُعا لولي:۔

اَللّٰهُمَّ اَعِنِّيْ عَلٰى تِلَاوَةِ الْقُرْاٰنِ وَ عَلٰى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ

اے پاک خدایه مالہ توفیق راکه دَ قرآن شریف لوستلو او ستا دَ ذکر او دَ شکر او دَ ښه عبادت

پوزے ته دَ اوبو اچولو په وخت کښي دا دُعا:۔

اَللّٰهُمَّ اَرِحْنِيْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ وَ لَا تُرِحْنِيْ رَائِحَةَ النَّارِ

اے پاک خدایه په ما بوئي که بوئي دَ جنت او مه بوئیوه بوئي دَ دوزخ

دَ مخ ایښلو په وخت کښي دا دُعا:۔

اَللّٰهُمَّ بَيِّضْ وَجْهِيْ يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوْهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوْهٌ ط

اے پاک خدایه مخ سپین که په کوم ورځ چه به هغه مخونه سپین شي او څه تور ریږي دَ قیامت په ورځ)

دَ ښي لاس ایښلو په وخت کښي دا دُعا:۔

---

۱ منیه ودودره ۱۲ ۲ په دے عبارت کښي اشاره ده چه مستحبات زا اودا سه نو رهم پریدي۔ لکه دغه داوره په لوښي کښي اخستل۔ کوزه چپ طرف ته کیښودل۔ دَ لاس ښي قبضه دره پیره ایښلو په مضمضه او استنشاق کښي مبالغه وغیره وغیره۔ بلکه بعضي عالمانو تقریباً دَ شپیتو پورے ذکر کړي دي۔ دا رنګ دَ دے کتاب په اکثرو مقامونو کښي دَ مستحباتو وغیره عدد چه ذکور دے په دغه عدد کښي حصر نشته۔ دَ دے وجه نه ما په دا سے مقام کښي وئیلي دي مثلاً چه دا سفن دي دا نه چه سفن دا دي او نه ۱۲ ۳ شامي مجمع الانهر بغرتي ببیبي ۱۲

اَللّٰھُمَّ اَعْطِنِیْ کِتَابِیْ بِیَمِیْنِیْ وَ
حَاسِبْنِیْ حِسَابًا یَسِیْرًا ط

اے پاکہ خدایہ مالہ ځما عملنامہ ځما پہ ښی لاس کښں راکہ
او ځما سرہ حساب کتاب پہ آسانئے وُکہ۔

دَ کس لاس اینځلو پہ وخت کښں دا دُعا:۔

اَللّٰھُمَّ لَا تُعْطِنِیْ کِتَابِیْ بِشِمَالِیْ وَ
لَا مِنْ وَرَآءِ ظَھْرِیْ وَلَا تُحَاسِبْنِیْ
حِسَابًا عَسِیْرًا ط

اے پاکہ خدایہ مہ راکوے مالہ عملنامہ ځما۔ ځمایہ
کس لاس کښں او نۀ ځما دَ شا غاړے۔ او
مہ کوہ ځما سرہ حساب سخت۔

دَ سرمسح کولو پہ وخت کښں دا دُعا:۔

اَللّٰھُمَّ اَظِلَّنِیْ تَحْتَ عَرْشِکَ
یَوْمَ لَا ظِلَّ اِلَّا ظِلُّ عَرْشِکَ

اے پاکہ خدایہ پہ ما سورے وُکے دَ خپل عرش لاندے پہ
کومہ وُرځ چہ بہ سورے نہ وی بے ستا دَ عرش دَ سورے نہ
(یعنی پہ ورځ دَ قیامت)

دَ غوږونو دَ مسح پہ وخت کښں دا دُعا:۔

اَللّٰھُمَّ اجْعَلْنِیْ مِنَ الَّذِیْنَ یَسْتَمِعُوْنَ
الْقَوْلَ فَیَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَہٗ ط

اے پاکہ خدایہ ما وګرځوہ دَ ھغہ کسانو نہ چہ خبرے
غوږ کښی نو چہ کومہ ښہ وی متابعت کوی دَ ھغے

دَ څټ دَ مسح پہ وخت کښں دا دُعا

اَللّٰھُمَّ اَعْتِقْ رَقَبَتِیْ مِنَ
النَّارِ

اے پاکہ خدایہ ځما څټ آزاد کړے دَ دوزخ
نہ (دَ څټ نہ مراد ټول بدن دے)

دَ ښی خپے اینځلو پہ وخت کښں دا دُعا:۔

اَللّٰھُمَّ ثَبِّتْ قَدَمِیْ عَلَی الصِّرَاطِ
یَوْمَ تَزِلُّ فِیْہِ الْاَقْدَامُ

اے پاکہ خدایہ ځما قدم پہ پُل صراط باندے
مضبوط کړے پہ کومہ وُرځ چہ بہ خوځیږی پہ
ھغہ کښں ډیر قدمونہ (یعنی پہ وُرځ دَ قیامت)

دَ کسے خپے اینځلو پہ وخت کښں دا دُعا:۔

اَللّٰھُمَّ اجْعَلْ ذَنْبِیْ مَغْفُوْرًا ط
وَ سَعْیِیْ مَشْکُوْرًا وَّ تِجَارَتِیْ
لَنْ تَبُوْرَ

اے پاکہ خدایہ ځما ګناہ معاف کړے او ځما
کوشش فائدہ مند دَ شکر څخہ او ځما
سوداګری بے نقصانہ کړے۔

**مسئلہ**[1] :۔ بعضے وائی چہ خپے او ښځی نو دَ او داسہ دَ باقی او بونہ نہ دے
اوبہ پہ ولاړے څخ پہ قبلہ څکل ھم مستحب دی۔ کہ روژہ ئے نہ وہ۔ او بعضے
وائی چہ پہ ولاړے څکی او کہ پہ ناستئے۔ پہ ھر حال بہ دَ دے اوبو نہ

[1] منیہ و شامی ۱۲

اوبه د زمزم د اوبو نه پرته اوبه په ولاړه څکل مکروه دي - او د اودس نه پس درود شریف لوستل مستحب دي[۱] - او دا دعا ویل هم مستحب دي :-

اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِیْ مِنَ التَّوَّابِیْنَ وَاجْعَلْنِیْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِیْنَ وَاجْعَلْنِیْ مِنْ عِبَادِکَ الصَّالِحِیْنَ وَاجْعَلْنِیْ مِنَ الَّذِیْنَ لَا خَوْفٌ عَلَیْهِمْ وَلَا هُمْ یَحْزَنُوْنَ ۔

اے پاک خدایه ما وګرځوه د توبه کونکو نه او ما وګرځوه د ښه پاک کیدونکو نه - او ما وګرځوه د خپلو نیکو بندګانو نه - او ما وګرځوه د هغه کسانو نه چه نشته هیڅ یره په هغوی باندے او نه به هغوی غمجن کیږی (یعنی ما داخل که د هغوی په جماعت کښې)

مسئله[۲] :- ژمی په موسم کښې په اندامونو باندے د اینجلو نه مینځه لوند لاس را ښکودل هم پکار دي - ځکه چه په دے موسم کښې د بدن خشکی زیاته وی - او مسامات بند - نو زر اوبه ناځی -

مسئله[۳] :- ګوته - بنګړی - موټی - ګانټے وغیره که دومره ارت وی چه بے د حرکت ورکولو نه هم د هغے لاندے اوبه رسیدے - بیائے هم ګرځول او خوزول مستحب دي - او که دومره تنګ وی چه بے د ګرځولو نه ئے د اوبو نه رسیدو ګمان کیږی - نو ګرځول او حرکت ورکول ضروری دي - د پاره د دے چه لاندے ئے لاس وچ پاتے نشی - او د میځکی او د چارګل او نتکئی وغیره هم دا حکم دے - چه د پوزے سورے که ارت وی - نو د هغې اینجلو په وخت کښې د میځکی وغیره ګرځول مستحب دي - او که تنګ وی - نو بیا ورله حرکت ورکول او د هغه لاندے اوبه رسول ضروری دي -

مسئله[۴] :- ښے لاس د ګس نه مینځه اینجل او دارنګ ښپئ خپه د ګیس نه مینځه اینجل مستحب دي - لیکن د غوږو په مسح کښې د ښی مینځه کولو استحباب نشته - بلکه د دواړو غوږونو مسح به یو ځائے کوی - هاں که د اودس کونکی صرف یو لاس وی - یا بل لاس ئے معذور وی - د غوږو مسح ئے یو ځائے نشوه کولے - نو مینځه به د ښی غوږ مسح کوی بیا د ګس -

مسئله[۵] :- که اودس کونکے معذور نه وی - نو د مانځه د وخت نه د مخه مینځه اودس کول مستحب دي -

---

[۱] منیه وشامی ۱۲ [۲] بحرالرائق ۱۲ [۳] در مختار وشامی ۱۲ [۴] ملتقی الابحر ۱۲ [۵] در مختار وکبیری ۱۲

**مسئله**[1] :- که د اودس نه پس په تولیه وغیره ځان وچوی بدی پکښی نشته - خو دومره مبالغه بنه نه ده - چه د لوند والی اثر هم و پاتے نشی - او په کوم ټوکی چه د استنجا اندام اوچ کړی - په هغے د چار اندام اندامونه وچول مکروه دی -

**مسئله**[2] :- په اودس چه د کوم یو رے باقی وی - هر څو مره مونځونه پرے کولے شی - اگر که د مختلفو وختونو وی - او که اودس ئے وو - سره د هغے ئے بل اودس وُکه - نو مستحب دی - نُورٌ عَلٰی نُورٍ دے - لیکن که په شته اودس ئے څه عبادت نه وی کړے - نو په اودس دِ نه کوی - ځکه چه دا اسراف دے - او که کم نه کم دوه رکعته نفل ئے پرے کړی وی - مثلاً بیا په نوی اودس کښی بدی نشته بلکه غوره دے

**مسئله**[3] :- اودس کونکی دے په اوبو استعمالونو کښی ډیر زیاتے نه کوی - اگر که د سیند په غاړه وی - او ډیر کم دِ هم نه کوی - او په اوبو سره څه له څیپے راپریخږدل داسے په ایله کښی پوکل - دارے نوستل - د څخه د اودس نه چه کومے اوبه پاتے شوی وی - په هغه اوبو اودس کول - او د اوداسه په اوبو کښی تو کل وغیره وغیره مکروه دی - په پلیت ځای کښی دِ هم اودس نه کوی - او دا رنگ په جُمات کښی - لیکن که په څه لوخی[4] کښی ئے کاوُ - یا د اودس د پاره څه ځای رغنوے وُ په هغے کښی ئے کاوُ بیا خیر دے -

د اودس کولو مسنونه[5] طریقه او نورے مسئلے

کوم وخت چه اودس کول غواړے - په یو لوړ ځای[6] کینه - او جامے دِ راټولے کړه - د پاره د دے چه دارے پے نه لګی - او د اودس شروع کولو په وخت[7] کښی بسم الله اووایه - اول درے[8] ځلے دواړه لاسونه د مړوندو پورے وینځه - بیا درے ځلے[9] خوله ښه کنګال کړه - مسواک[10] هم او وهه که روژه[11] دِ نه وی نو په خوله کنګالولو کښی مبالغه وکړه - یعنی د غرغره په ذریعه ټولے خولے ته اوبه په ښه شان سره اورسوه - او که روژه دار ئے - نو غرغره مکوه - داسے نه چه اوبه دِ تیرے شی - بیا پوزے ته اوبه راچوه - پورته ئے راکاګه - او په کس لاس دِ پوزه سُونډ که - او که روژه دِ وی نو د کومے پورے چه د پوزے نرمه غوبنه ده - د هغے نه پورته اوبه

[1] قاضیخان ۱۲ [2] منیه - [3] شامی پکښی تفصیل او اختلاف هم راوړے دے ۱۲
[4] شرح التنویر برد المختار ۱۲ [5] ابندائ اودس د پاره لوخے خاص کول دا ئی چه بنه نه دی ۱۲
[6] یعنی د چار اندام ۱۲ [7] غنیة المصلی ۱۲ [8] شرح التنویر ۱۲ [9] منیه ۱۲ [10] بحرالرائق ۱۲
[11] درمختار ورد المحتار ۱۲ [12] مراقی الفلاح ۱۲ [13] در مختار و شامی ۱۲

مهٔ رسوه - داسې نه چه په روژه کښې ډېره نرق راشي - او پوزې ته هم اوبه درې ځلې اچول سنت دی - بیا درې ځله په مخ اوبه واچوه - چه په هر وار د مخ په ټوله احاطه کافی اوبه اوبهیږی - چه د سترګو کونجونو ته او د وروځو بنګلو ته هم اوبه ورسی - او د تندی د برحد نه د زنې د کوزحده پورې او د یو غوږ د نرمې نه د بل غوږ د نرمې پورې چه د مخ ټوله احاطه ده - په دې کښې څه ځائ هسې پاتې نه شي - بیا درې ځلې ښې لاس ویځه د څنګلې پورې - بیا درې ځلې ګس لاس د څنګلې پورې - څنګلې هم په اینځلوکښې داخلې دی - او د یو لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو کښې ورکړه - د ګوتو خلال وکړه - بیا یو ځل د ټول سر مسح وکړه - او بیا مسح د غوږونو ددننه حصې مسح په مسوالکې ګوتو - او د بره حصې په غټو ګوتو - د غوږونو د مسح د پاره د نو اوبو ضرورت نشته - د سر د مسح نه چه ګوڅې اوبه په ګوتو پاتې شوې وې هغه بس دی - بیا د ګوتو په شا د څټ مسح وکړه - او د مرئ مسح نشته - بلکه بدعت دے - او منعه ده - بیا ښئ خپه درې ځله ویځه د پړکې پورې - بیا ګسه خپه دارنګ - او پړکی هم په اینځلو کښې داخل دی - او د ګس لاس په خچه ګوتې د خپو د ګوتو د لاندې غاړې نه خلال کول هم پکار دی - د ښئ خپې د خچې ګوتې نه شروع کول او د ګسې خپې په خچه ئې ختمول پکار دی -

**فائده** :- اودس په درې قسمه دے - فرض - واجب - مستحب - فرض لکه د پاره د مانځه - برابره خبره ده چه مونځ فرض وی او که غیر فرض - واجب لکه د پاره د طواف - مستحب لکه د پاره د خوب - او لیس د دروغو نه او پس د غیبت نه (خدا نخواسته) او د پاره د جنب چه څه خوړل څکل غواړی - یا اوده کیدل - یا مجامعت وغیره - بلکه د مستحب اودس د پاره بعضې عالمانو د دیرشو نه زیات مقامات ذکر کړی دی -

| پهٔ کوم شی چه اودس ماتیږی د هغې بیان |
| --- |

**فائده** :- اودس په نهو شیزونو ماتیږی - (۱) د وړه یا د لویو بولو د ځائ نه څه وتل - بے د هغې باد نه چه د مخې نه وځي - (۲) په بدن کښې د بل ځائ نه وینه یا نور څه نجاست بهیدل - داسې ځائ ته چه د هغې اینځل فرض وی - (۳) په ډکه خوله قے کول - (۴) قوت د امساک په لړے کوی هغه خوب - (۵) سوا د جنازې د مانځه نه په بل مانځه کښې د بالغ قهقهه

---

سله طحطاوی ۱۲ سله شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ سله یعنې په پوسره د دے نهو نه ۱۲ منه

(۶) بې هوشي - (۷) سُکر - (۸) لیونتوب - (۹) مباشرت فاحشه -

مسئله[1] :- په وړه بوله په لویه بوله - او کوم باد چه د شانه د لویې بولې په لاره وځي - په دې سره اودس ماتیږي - دارنګ که د لویې بولې یا د وړې بولې د ځای[2] نه څه چیچې راووت - یا کینځی وغیره - نو په دې سره هم اودس ماتیږي - هاں که د مخې[3] غاړې نه باد راووتل - لکه په ناجوړتیا کښې چه کله کله د بعضې خلقو کیږي - په دې سره اودس نه ماتیږي - او که د غوږ نه یا د پوزې نه یا د خولې چیچې راتاوُ شه په دې سره هم اودس نه ماتیږي - دارنګ که دانه ختلې وه - یا زخم وُ - د هغې نه چیچې او غوزینې - یا د پرهرنه څه غوښه راتاوُ شوه - او څه ئې وُنه بهیدل په دې سره هم اودس نه ماتیږي -

مسئله[4] :- په بدن کښې د هر یو ځای نه چه وي - که وینه یا نوُ داسې ځای ته راووت چه د هغې اینځل په اودس کښې یا په غسل کښې فرض وي - په دې سره اودس ماتیږي - مثلاً د چاپوزه ماته شوه - یا ئې ګک او واهه - یا ئې څه ځای خوږ شه - وینه ئې راووته - یا د دانې نه یا د پرهرنه وینه یا نوُ راووت - نو اودس ئې مات شه - لیکن که د زخم په خوله کښې وُ - او وُنه بهیدو نو په دې سره اودس نه ماتیږي - دارنګ که سنتن په ګوته کښې لاړه - او د وینې سوروالے ئې ورته ښکاره شه او د هغه ځای نه وُنه بهیده - نو اودس ئې نه ماتیږي - او که ایلاعه او بهیده نو اودس لاړ -

مسئله[5] :- په څه ځای ئې دانه وه - یا زخم وُ - د هغې نه ئې سر او شوکاؤ لاندې ئې وینه ښکاره شوه - یا نوُ ښکاره شه - نو په دې سره اودس نه ماتیږي ذکوې پورې چه وُنه بهیږي - او که وینه یا نوُ په زوراؤ ایستلې شه - نو د دې په بهیدو سره هم اودس ماتیږي -

مسئله[6] :- د زخم نه ئې لږه وینه راووته - نو خاوره ئې پرې ودوړلے - یا ئې په ټیکره وغیره پاک کړه - وینه بیا لږه راووته - ده ورسره بیا داچل وکه - غرض دا دے چه وینه لږه لږه راووته - او ده ورسره دا چل کاؤ - بهیدلو ته ئې پرې نخود - نو په دې سره اودس ماتیږي او که نه ؟ نو حکم دا دے چه ده که ورسره داچل نه وے کړے - اے بهیدلے به وه که نه ؟ که دومره وه

---

[1] درالمنتقیٰ او در مختار ۱۲ [2] د مخې نه وي او د څټې نه د دواړو یو حکم دے ۱۲ [3] منیه ۱۲ [4] فتح القدیر ۱۲ [5] منیه و شرح المنتقیٰ ۱۲

چه بهیږي به وه - نو اودس ئې مات شه کني نو نه -

مسئله[1] :- که ژوره ئې د ومره وینه وښکله چه اوس که هغه په مینځ پریکوې شي وینه به تړاو بهیږي نو دَده اودس مات شه - اوکه دومره ئې نه وي ښکلې بلکه کمه وي نو په دې سره اودس نه ماتیږي - لکه دَ ماشي اودَ وړکي اودَ مونګني اودَ سپږې په چیچلو سره چه نه ماتیږي -

مسئله[2] :- په غوږ کښې دانه وه - هغه ماته شوه - لیکن وینه یا نوُ بیه سُوري کښې د ننه دَ هغه ځائې پورې وُ - چه دَ هغې اینځل په غسل کښې فرض نه دی - او دَ هغې نه دې نوانوُ راووُتې - نو په دې سره اودس نه ماتیږي - اوکه د اسې ځائې ته راووت چه دَ هغې اینځل په غسل کښې فرض دی - نو اودس مات شه - هم دارنګ که دَ چا په سترګه کښې دانه وه - هغه ماته شوه - دَ هغې اوبه په سترګه کښې د ننه خورې شوې - باهرته راوُنه بهیدې نو په دې سره هم اودس نه ماتیږي اوکه دَ سترګې نه باهر راووتې - نو اودس مات شه -

مسئله[3] :- که چا پوزه سونړ کړه - او په هغې کښې دَ وینې قتلې[4] راوغورځیدې نو اودس پې نه ماتیږي - هغه پې ماتیږي چه وینه تړ وبه راوُځي - او اوبهیږي - اودارنګ که چا ګوته په پوزه کښې وَهله - چه راوُئې ویستله - په هغې ئې دَ وینې داغ وُلیده او وینه صرف دومره وه چه په ګوته قدرې لګیدلې - بهیدلې نه - نو په دې سره هم اودس نه ماتیږي -

مسئله[5] :- که په توکانړو کښې سره وینه معلومه شوه - نو د رې حاله دی - یا به وینه دَ توکانړو سره برابره وي - یا به تې زیاته وي - یا کمه - که وینه ورسره برابره وه - یا زیاته - نو اودس مات شه - اوکه کمه وه نو نه - او دا په رنګ سره معلومیدې شي - که توکانړې سور بیزنې وې : نو اودس مات شه - اوکه سپینوالی یا زیړوالی ته مائیلې وې نو نه -

مسئله[6] :- که چا خلال کاوُ - په خلال ئې دَ وینې څه داغ وُلید - یا ئې په غاښونو څه شي پریکاوُ - په هغې ئې دَ وینې نخه وُلیده - او په توکانړو کښې ئې دَ وینې څه اثر نه وُ - نو په دې سره اودس نه ماتیږي - او بعضې عالمان وائي چه داسې صورت کښې بکار دی چه هغه ځائې له ګوته یا څه جیبره ورووړی - نو که بیا پې وینه

---

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] درالمنتقی وشرح التنویر ۱۲ [3] منیه ودرمختار - [4] یعنی ټُنبره ټکړه ۱۲ [5] شامی ومراقی الفلاح ۱۲ [6] کبیری ۱۲

ګلیږه - اودس پې ماتیږي - ځکه چه معلومه به شي چه ډیره ده - او د بهیدو ده - او که دا سې نه وه - نو نه - او په دې کښې احتیاط دې -

**مسئله**[1] :- که غوږ درد کاوُ - او د هغې نه اوبه راووتې - نو دغه اوبه ناپاکې دي او اودس پې ماتیږي - خو هله چه د غوږ د سُوري نه راووبهیږي دا سې ځائ ته چه د هغې اینځل په غسل کښې فرض دي - او دا رنګ که د ټِي نه یا د نامه نه اوبه راووتې او درد ور سره وُ - نو په دې سره هم اودس ماتیږي - او که په دې صورتو نو کښې اوبه تلې بې درد نه نو اودس پې نه ماتیږي -

**مسئله**[2] :- که د سترګو نه د زخم په سبب اوبه راووتې - برابره خبره ده چه زخم ښکاره وي او که ښکاره نه وي - خو د ماهر طبیب په وینا سره یا په علامتو سره سړي ته معلوم وي - نو په دې اودس ماتیږي - او که دا اوبه ئې د سترګو مُسلسلې تلې - نو بیا دې معذور دې - د معذور حکم به په دې کتاب کښې په خپل باب کښې بیان شي - او که هسې د سترګو اوښې تلې نو په دې سره اودس نه ماتیږي -

**مسئله**[3] :- که د لمبلو په وخت کښې ئې غوږ ته اوبه لاړې - بیا دوستو دغه په پوزه راووتې - یا په غوږ نو په دې سره اودس نه ماتیږي -

**مسئله**[4] :- که په غوږ کښې ئې تیل وڅڅول - او دغه یوه ورځ په دماغ کښې حصار شو - بیا په غوږ راووتل - یا په پوزه - نو په دې سره اودس نه ماتیږي -

**مسئله**[5] :- که چا وُچار یبنئل یعنې قې ئې وکړو - یا وُشه - او په هغې کښې ئې هسې اوبه یا طعام یا ترخې اوبه راوغورځولې - نو په دې سره اودس مات شه - ولې هله چه په ډکه خوله وي - او که په ډکه خوله نه وُ - بلکه کم وُ - نو اودس نه دې مات او د ډکې خولې مطلب دا دې - چه په خوله کښې په ګرانه حصاریږي - او که په قې کښې ئې صرف بلغم وغورځوه نو په دې سره اودس نه ماتیږي - برابره خبره ده چه ډکه خوله وي - او که نه - او که په قې کښې ئې وینه راوغورځوله - نو که نروبه او بهیدونکې وه - اودس مات شه - برابره خبره ده - چه لږه وي - او که ډیره -

**مسئله**[6] :- که یو څو واره لږ لږ قې وُ شه - او ټول دومره وُ چه په یو

---

[1] درمختار ۱۲ [2] درمختار و شامی ۱۲ - [3] شرح التنویر و ردالمحتار ۱۲ [4] خانیه و کبیری ۱۲ [5] هدایه ۱۲ [6] درمختار ۱۲ -

ځائی که شوی وی هم به ډکه خوله نه وی. کم به وی. نو په دے سره اودس نه ماتیږی.
اوکه دومره وی. چه ډکه خوله به وی نو اودس ئی ماتیږی چه د اول ځل هغه زړه ایشیل
برابر باقی دو. اوکه نه. که د لین لین ئے کیږی لو په وخت کښی هغه ورومبی زړه
ایشیدل برابر باقی دو. نو اودس مات شه. اوکه داسے نه وه. بلکه یو ځل ورته
زړه وایشیږی. نو لین ئے وکه. بیا اسم شه. بیا ورته زړه وایشیږی او لین ئے
وکه. او دی یو ځل ئے ډکه خوله نه کم وی. نو اودس ئے نه دے مات. مطلب دادے
چه د یو وار زړه ایشیدلو په سبب چه ئے څومره قے کړے وی. که هغه ډکه خوله
کیږه په هیرږی اوکه جدا جدا. نو اودس پے ماتیږی. که نئی نو نه.

**فائده**:- د کوم څیز په وتلو سره چه په سبب د لین والی اودس ماتیږی
هغه پلیت هم نه وی. نو که قے د ډکے خولے نه کم وشه. او په قی کښی ئے هسے
اوبه یا طعام یا زیړے اوبه او عنور څرلے. یا لین و وینه زخم نه راووتله. او وُنه
بهیده نو داقے او دا وینه پلیت نه دی. که دا په بدن یا په زړوکی ولګیږه. نو د
هغے اینځل واجب نه دی. خوعفانی بنه ده. هاں که دا په لین وا وبو یا په بل بهینه
شی کښی ولویږه. نو احتیاط په دے کښی دے. چه هغے ته ناپاک او وایو. او که
داقے ډکه خولهٔ یا وینه د زخم نه او بهیده نو داپلیت دی. که په زړوکی یا په
بدن ولګیږه اینځل ئے واجب دی.

**مسئله**:- که وړوکی بچی قے وکړه. د هغهٔ هم دا حکم دے. چه د ډکے خولے
نه که کم وی. نو نجس نه دے. اوکه ډکه خوله وی. یا زیات وی. نو نجس دے. که د چا
په څه ځائے ولګیږه. نو مونځ د هغه کوی چه وئے اینځی.

**مسئله**:- خدائی د نکړی. که چا شراب وڅکل. یا وارپه بول ئے وڅکل
او بیائے د دے قے وکړه. نو اګر که دا قے ډکه خوله نه وی. بیا هم پلیت دے.

**مسئله**:- که د لو یو بولو د ځائی نه ئے څه نڼ رے باد اووت. او ده ته
یقینی بنه معلومه وه چه دا هغه خاص باد نه دی. د برسے نه نڼ ری راغلی.
او آواز او بوئیں هم نه وی. نو په دے اودس نه ماتیږی. بلکه دے ته اختلاج
د ټیلے شی. خو بنه فکر بکار دے. داسے نه چه مونځ بے اودسه وکړی.

---

سلہ درمختار وردالمختار ۱۲ سلہ شرح التنویر ۱۲ سلہ شرح التنویر و مجمع
الانہر ۱۲ سلہ شرح التنویر و مجمع الانہر ۱۲۔

**مسئله[۱]**:- که ځا بادلي وي - او په هغه برابرې پرتوګ یا شه ځای لوند وُ- نو دا خیال دِ نه کوی - چه پرتوګ پلیت شه - په دې سره څه شئ نه پلیتیږی ځکه چه د باد پخپله نجس نه دی۔

**مسئله[۲]**:- که څوک اوده شه - ستونی ستغ یا په ډډه - یا پریوځي نو اودس یې مات شه - او که په ناسته ناسته اُوده شو - او کُناتي یې دواړه په زمکه لګیلی وُو او څه شی ته یې داسې ډډه وهلې وه - چه دغه شئ که نه وې - دے به غورځیدلے وُ- نو په دے سره هم اودس ماتیږی - او په دے کښې احتیاط دے - او که کناتي یې نه وُ لګیدلی - نو په داسې حالت کښې په اُوده کیدلو سره دَ اودس په ماتیدلو کښې دَ عالمانو اتفاق دے - اختلاف پکښې نشته۔

**مسئله[۳]**:- که په مانځه کښې اُوده شی په ولاړه یا په ناسته یا په رکوع کښې یا په سجده کښې - او سجده یې دَ سنت سره موافق وه - نو په دے اودس نه ماتیږی لیکن که ښځه په سجده کښې اوده شوه - او سجده یې په هغه طریقه وه - چه کومه طریقه دَ ښځو دَ سجدے ده - نو په دے اُوده کیدلو سره دَ ښځې اودس ماتیږی۔

**مسئله[۴]**:- که چا دواړه زنګنونه وُدرول او دواړه کُناتي یې په زمکه مضبوط وُلګول - او دَ دواړو پښو ونه یې لاسونه چاپیره کړل - یا یې په پښه دواړه پښې دَ ملا سره وتړلې او سر یې په زنګنونو کیخود - او څه شی ته یې ډډه نه وه وهلې په خوب ورغے نو په دے سره اودس نه ماتیږی۔

**مسئله[۵]**:- که څوک په ناسته اُوده شو - او په دے اُوده کیدو یې اودس نه ماتیدو - او زنګیده زنګیده اړتاؤ شو - نو که دے زمکے ته دَ رسیدو سره ویښ شو نو - اودس یې نه دے مات - او که زمکے ته دَ رسیدو نه لږ ساعت پس ویښ شوے وی نو اودس یې تللے دے۔

**مسئله[۶]**:- که څوک په ناسته بې تکیه اوده شو - او دواړه کُناتي یې په پوره مضبوطې ایښې وو - نو په دے سره اودس نه ماتیږی۔

**مسئله[۷]**:- که چا په مانځه کښې قهقهه وکړه - یعنې په زوره یې وخندل چه دَ هغه نه دے خوا هغه خوا چه څوک وُو - هغو ښه واوریده - نو دَ قهقهه کونکی اودس مات شو - او مونځ یې هم مات شو - برابره خبره ده چه بلوغ او که ښځه - او

---

[۱] شامی ۱۲ [۲] هدایه ۱۲ [۳] رد المختار ۱۲ [۴] منیه وکبیری ۱۲ [۵] شامی وکبیری ۱۲ [۶] ... ۱۲ [۷] هدایه ۱۲ [۸] یعنی په دے قول کښې ۱۲

که قصداً وی اوکه په هیره - او دَ مانځهٔ نه بهر په قهقهه کولو سره اودس نه ماتیږی

(۱۷) مسئله[۱] :- که په مانځهٔ کښې نابالغ هلک یا نابالغه جینۍ قهقهه وکړه - یا څوک بالغ وُ - خو په مانځهٔ کښې اُوده شه - او په اُوده وېئ قهقهه وکړه - یا چا دَ جنازې په مانځهٔ کښې قهقهه وکړه - یا دَ تلاوت سجدې کوله - په هغې کښې ئې قهقهه وکړه - نو ددې ټولو صورتونو حکم دا دې چه په دې قهقهې سره اودس نه ماتیږی خو دغه مونځ ئې مات شه - او دا رنګ دَ تلاوت سجدې اونه شوه -

مسئله[۲] :- که چا په مانځهٔ کښې ضحک وکه - یعنې په آواز سره ئې وخندل خو آواز ئې په خپله واوریدو - او دې خوا هغه خوا چه څوک وُو - هغو به نه وو اوریدو یعنې وُئې خندل په آواز سره خو خندا ئې کمه وه دَ قهقهې نه - نو په دې سره اودس نه ماتیږی - البته مونځ ئې ماتیږی - اوکه صرف تبسُّم ئې وُکه - یعنې بې دَ آواز نه ئې وخندل - چه صرف غاښونه قدرې ښکاره شو - هغې مسکې شه - نو په دې سره نه اودس ماتیږی نه مونځ -

مسئله[۳] :- که څوک په مانځهٔ کښې په آخری قعده کښې ناست وُ - او دَ تشهُّد مقدار ئې پوره که - او دَ سلام ګرځولو نه مخکښې ئې قهقهه وکړه نو اودس ئې مات شه - او مونځ ئې په کیدو شه -

مسئله[۴] :- که څوک بې هوشه شه - یا لیونې شه - نو اګر که دا بې هوشی یا لیونتوب دَ لږ ساعت دَ پاره وی - په دې سره اودس مات شه - اوکه دَ لښتې څه شې وُسکه - یا ئې اوخوړ - او بې هوشه شه - نو په دې سره هم اودس ماتیږی -

مسئله[۵] :- که دَ چا په حواسو کښې څه خلل پیدا شه - او دا خلل دَ بې هوشۍ او دَ لیونتوب حد ته نه وُ رسیدلې نو په دې سره اودس نه ماتیږی -

مسئله[۶] :- که اودس ئې وُ - او نوک ئې پرېکړه - یا ئې سر وُخرایه - یا خدائې دِ نکړی - بیرې ئې وُخریله - یا دَ پرهرونه ئې مردار پوستکي وشوکاوُ - او وینې نشه - نو په دې سره په اودس کښې څه نقصان نه راځی - اودس نوی کولو ته ضرورت نشته - بلکه دغه ځاې لمدولو ته هم ضرورت نشته -

مسئله :- دا درته یاد دی چه ما اودس کړې وُ - خو دا ئې هیر دی چه

---

[۱] درمختار ومنیه ۱۲ [۲] منیه ۱۲ [۳] درمختار وشامی ۱۲ [۴] درمختار ۱۲ [۵] طحاوی ۱۲
[۶] منیه ودرمختار ۱۲ [۷] کبیری ۱۲ -

هغه مات شوے دے - او که نه - نو اودس ئے په ځائے دے - لیکن که نوے اودس ئے وکړه - غوره ده - او که اودس ماتول ورته یاد وو - خو دا ئے هیر دُو چه بیا ئے اودس کریدے او که نه - نو اودس به ئے مات گنړلے کیږی - غرض دا دے چه کوم شے یقینی وی - هغه په شک سره نه لرے کیږی نو که د اودس کولو په وخت کښې ئے شک راغے چه ما فلانے اندام اینځلے دے او که نه - نو هغه به بیا اینځی - ځکه چه د هغه نه اینځل یقینی وو - او که پس د اودس نه چاته معلومه شوه - چه ما د یو اندام اینځل پرېښی دی - خو دا ورته نه وه معلومه چه هغه اندام کوم یو دے - نو وُس د کسه خپه وا ینځی - او دا رنګ که په اودس کښې دننه ورته داسے شک پیښ شه - نو اخیری اندام دِ وا ینځی - مثلاً سړی لاس د څنګلے پورے وا ینځه - او بیا ورته داسے شک پیښ شه - نو دس ئے وا ینځی - خو دا حکم هغه دے - چه دا اودس کونکے شکی نه وی - او که شکی وُ نو شک ته دِ خیال نه کوی -

مسئله :- که پس د اودس نه ئے د دیربولو د ځائے په برابرئه لوند ملے ولیده (شک ئے پیدا شه چه دا اوبه وی که څڅیدلے - نو که دا شک ورته اول ځل پیښ شوے وی - اودس دِ دوباره وکړی - او که عادت ئے شک وی - پرواه دِ نه کوی اودس ئے شوے دے - او د شکی سړی د پاره غوره دا ده چه پس د اودس نه د دیربولو په ځائی او په څخنی د اوبه دارے ورلولی - د پاره د دے چه شک لرے شی - او د دے نه الا غوره خبره ورله دا ده چه قطنه کیږدی - او که بے د قطنے کیښودلو نه ئے د دومره وخت د پاره هم شکمنه لرے کیدا شی چه مونځ په کښې ادا کړے شی - نو قطنه اینجودل ورله واجب دی - او د دے بیان به په دویمه مسئله کښې راشی -

مسئله :- که د دیربولو قطره د دیربولو ځائی ته راکوزه شوه - نو صرف په دومره قدر سره اودس نه ماتیږی - د کومے پورے چه د سُوری سرته ئُ نه رسی او که سړے ناشُنته وُ - او قطره ئے او ورته - خو کومه څرمن چه پریکول سنت دی په هغے کښې دننه وه با هرته نه وه وتے - نو هم ئے اودس مات شه - او دا رنګ که د دیربولو قطره د بنځے نرج خارج ته را اوتله نو اودس ئے مات شه - اګر که د باندنی څرمنے نه نوی وتے -

مسئله :- که سړی قطنه کیخوده - یعنے د دیربولو د قطرے بندولو د پاره

له شامی ۱۲ ته درمختار وشامی ۱۲ ته شرح التنویر و رد المحتار ۱۲

ئے دَ خپل خاص اندام په سوری کښې مالوچ کيخودلے - او دَ مالوچ يو سر بهر شه - او بل ښکاره وُ - نو که ښکاره سرے دَ سوری نه باهر وُ - يا د سری برابر وُ - نو اودس په قطره دَ ملا ماتيږی چه دَ مالوچ ښکاره سر ته دَ ويرو بولو لوند والے وُرسی - او که صرف پټ سرے لوند شه - نو په دے سره اودس نه ماتيږی - او که دَ مالوچ ښکاره سر دَ سوری دَ سر نه کوز وُ - يعنے دننه وُ - نو که تول مالوچ لامده شول هم ئے اودس نه ماتيږی - دَ کوم پورے چه دَ سوری سر ته لوند والے وُ نه رسی - او که مالوچ ئے را او وتل - نو که لوند والے په مالوچ وُ - اودس به مات شی - او که بالکل وچ وُ - نو اودس نه دے مات - او که ښځے په خپل فرج[1] داخل کښې مالوچ کيخودل - دَ ښځے هم دا حکم دے خو دَ فرج خارج اعتبار نشته -

مسئله[2] :- که دَ مفضاة[3] ښځے دَ ويرو بولو دَ اندام نه باد او وتل - نو بعضے وائی - چه اودس مات شه - نو ئے اودس ورله واجب دے - او بعضے وائی چه نه بلکے مستحب دے - او بعضو دارمضاد په تورځ يئے دے -

مسئله[4] :- که دَ سړی آلت په[5] حالت دَ انتشار کښې دَ ښځے دَ مخصوص اندام سره ولګيده - او په مينځ کښې دَ پوکے وغيره حائل نه وُ - نو صرف په دې سبب سره دَ دواړو اودس مات شه - اګرکه څه نوی وتی - او که انتشار نه وُ - نو دَ ښځے اودس خو مات شه - او دَ سړی نه دے مات - دَ کوم پورے چه ئے څه نه وی وتی - او دے ته مباشرت فاحشه وئيلے شی - او معاذ الله که دوه ښځے دا رنګ مباشرت وُکه - يا دوه سړو سره دَ انتشاره - نو هم دا حکم دے - چه اودس دَ دواړو مات شه -

مسئله[6] :- دَ مذی او دَ ودی په وتو سره اودس ماتيږی - او که منی بے شهوته او وته - مثلاً دَ څه بيماری په وجه - نو په دے هم صرف اودس ماتيږی او که منی په شهوت سره او وته - نو غسل فرض کيږی - باقی دَ دريو واړو فرق او تفصيل به په باب دَ جنابت کښې راشی -

مسئله[7] :- که دَ چا دَ لويو بولو ځائے نه څه حصه را اوته - کوم ته چه په پښتو کښې سوبره وئيلے شی - نو په دے سره ئے اودس مات شه - برابره خبره ده - چه بيا په خپله دننه لاړه شی - يا ئے دے په څه طريقه دننه کی

[1] فرج داخل دَ ښځے دَ ويرو بولو دَ ځائے دننه سوری ته وئيلے شی - او فرج خارج باندنی سوری ته ۱۲ [2] منيه وکبيری ۱۲ [3] مفضاة هغه ښځے ته وائی چه دَ بولو دواړه لارے ئے يو شوے وی ۱۲ [4] در مختار وشامی ۱۲ [5] يعنے شئے ولاړ ووه ۱۲ [6] هنديه وعراقی ۱۲ [7] در مختار وشامی ۱۲

**(غسل اقسام)** غسل[1] څلور قسم دے - فرض - واجب - سنت - مستحب - په درے صورتونو کښې غسل فرض دے - جنابت - بندیدل د حیض - بندیدل د نفاس او د هر یو بیان به په خپل خپل باب کښې په تفصیل سره راشي - او په څلورو صورتونو کښې غسل واجب دے - (۱) کافر اسلام راوړو په حالت د جنابت کښې یا ښځې په حالت د حیض و نفاس کښې نو غسل پے واجب کیږي - یعنې نو مسلم که د لوئے بے اودسۍ نه نوی پاک نو غسل پے راځي - (۲) مسلمان مړی له په ژوندو بانـدې غسل ورکول واجب دی - کفایةً - یعنې یو تن که ورله غسل ورکه - هم پوره ده د ټولو ذمه خلاصه شوه - او که یو هم ورنه که - نو ټول چه ئې خبروی ټول ګناهګار شي - (۳) که په ټول بدن نجاست ولګیده نو غسل ئې واجب دے - (۴) که د بدن په یو ځائے نجاست ولګید - او ځائے بالکل معلوم نه شه - نو غسل واجب دے بهرحال په دے څلورو صورتونو کښې چه غسل لازمیږي - بعضې فقهاؤ ئې تعبیر په فرض سره کوی - او بعضې په واجب سره - لیکن په څلورم صورت کښې اختلاف دے چه غسل لازمیږي او که نه - صرف د یو ځائے اینځل کافي دی - او غسل مستحب دے - په دے څلورو صورتونو کښې غسل سنت دے - د پاره د جمعې[2] - د پاره د اخت‑اختر لوئ وړې او که وړوکے - د پاره د احرام[3] - احرام د حج وی او که د عمرے - او که د دواړو د پاره د وقوف[4] په عرفه کښې - او په دے څلیریشت صورتونو کښې غسل مستحب دے - (۱) د هلک یا د ښځې عمر چه پوره پنځلس کاله شي - او د بلوغ علامت پکښې موجود نه شي - نو په دغه وخت کښې ورله غسل مستحب دے - (۲) که کافر مسلمان شو او د لوئے بے اودسۍ نه پاک وُ - نو د اسلام راوړلو د پاره ورله غسل مستحب دے - (۳) د لیونتوب او د بے هوشۍ لرے کیدلو پس - (۴) د ښکر لګولو ورسته - (۵) د شوقدار د میاشتے په نیمه شپه - (۶) د عرفې په شپه - (۷) په شپه د لیلة القدر کښې چه دے ویني - (۸) د مزدلفې د قیام د پاره - (۹) د رمی جمار د پاره - (۱۰) مکے شریفې ته د داخلے د پاره - د پاره د طواف زیارت - (۱۱) مدینې منورے ته د داخلید د پاره - (۱۲) د استسقاء د مانځه د پاره - (۱۳) د خسوف او کسوف د مانځه د پاره - (۱۴) د یرے په وخت - (۱۵) د سختے سیلۍ او د طوفان په وخت - (۱۶) د ګُرزے چه سخته تیاره شي - (۱۷) د نوو جامو اغوستو د پاره - (۱۸) عام مجلس له د ورتلو د پاره - (۱۹) څوک چه

---

[1] در مختار و رد المحتار و غنیه ۱۲ [2] او بعضې وائي چه دا غسل د جمعې او د اختر د مانځه د پاره دے او بعضې وائي د ورځے د پاره

مړے ولمبوي - (۲۰) څوک چه د ګناه نه توبه اوباسی - (۲۱) څوک چه د سفرنه واپس خپل وطن ته راشی - (۲۲) څوک چه قتل کیږی - (۲۳) د مستحاضې ښځې وینه چه ودرېږي (۲۴) د سړی چه احتلام وشی - او بیا د ښځې سره مباشرت کول غواړی - د دے ټولو د پاره غسل مستحب دے -

**د جنابت بیان** | د جنابت[1] د پاره دوه سببه دی - یو سبب دخول[2] د حشفې دے - یعنې د مشتهی انسان حشفه چه د ژوندۍ ښځې په قبل[3] یا دُبر کښې داخله شی - یا د بل داسے بنده په دُبر کښې چه هغه ژوندے وی - او شهوت ورته کیږی نو اګرکه منی نوی وتی - غسل فرض شه - که دواړه عاقل بالغ وو - نو په دواړو او که یو، نو په یو -

مسئله[4] :- که د سړی حشفه پریکړے شوے وه - نو د هغه په دغه باقی اندام کښې به د حشفې د مقدار اعتبار کیږی - یعنې که د دغه خاص اندام دومره حصه داخله شوه څومره چه د حشفې وی - نو غسل فرض شه - کنی نو غسل به هله فرض کیږی چه انزال وشی -

مسئله[5] :- که سړے خصی وُ - نو د هغه د حشفې په دخول سره هم غسل لازمیږی - که دواړه عاقل بالغ وُو - نو په دواړو - او که یو نو په یو -

مسئله[6] :- که حشفه تامه غائبه نه شوه - نو غسل به هله لازمیږی چه منی وُځی -

مسئله[7] :- که سړی په خپل خاص اندام چیرته تاؤ کړے وه - یا بل څه شے - او جماع ئے کوله - نو که چیرته نرئ وه چه ده ته د جسم ګرمی رسیده - او مزه حاصلیده - نو غسل فرض شه - اګرکه منی نه وی وتے - او که پیرنډه وه - چه د هغې په وجه ئے حرارت نه محسوساوُ - خوند ئے نه مونده - نو غسل پے لازم نه دے - دګوے پورے چه انزال ونشی - لیکن د احتیاط خبره داده چه په دے صورت کښې هم غسل لازم دے -

مسئله[8] :- که جینئ نابالغه وه - لیکن دومره وړه نه وه چه د هغې په جماع کښې د قبل دُبر یو ځائ کیدو خوف وُ - نو د بالغ سړی د حشفې په دخول سره غسل لازمیږي

---

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] حشفه د سړی د وړو بولو د ځائ سرته ویلے شی ۱۲ [3] قبل د وړو بولو ځائ ته وائی او دُبر د لویو بولو ځائ ته ۱۲ [4] تنویر الابصار ۱۲ [5] فتاوی خانیه ۱۲ [6] شامی ۱۲ [7] بحر الرائق ۱۲ [8] شرح التنویر ۱۲

الو که منی تے ژنه وځی - او که ځینئ دومره وړه وه - چه مذکوره خوف پکښې ؤ - نو صرف په دخول دَ حشفے سره په سړی غسل نه لازمیږی - دَ کوټے پورے چه ئے انزال وُ نشی -

**مسئله**[1] :- دَ حشفے په دخول سره چه غسل لازمیږی - دا حکم صرف دَ مشتهی انسان په جماع کښې دے - او په بل ځائ کښې دَ غسل لازمیدو دَ پاره انزال شرط دے - نو معاذ الله که سړی دَ ځناورو سره بدکاری وکړه - یا دَ مړے ښځے سره نو محض په دخول سره پے غسل نه راځی - دَ کومے پورے چه ئے انزال وُ نشی - باقی شوه دَ گناه خبره نو هغه جدا ده - او دارنګ حکم دے دَ جلق او دَ تفخیذ وغیره - یا فرض که چه یوه ښځه ده - هغه کونه - یا لرګے یا بل داسے څیز استعمال کړ یا دَ صرف سړی هغه شے - یا دَ مخنث یا دَ دومره وړوکی هلک چه شوق ئے نه ؤ - نو په دے ټولو صورتونو کښې اصل مذهب دا دے چه غسل پے نه لازمیږی - دَ کومے پورے چه دَ هغه انزال وُ نشی - باقی دَ گناه حکم جدا دے -

**مسئله**[2] :- په نوم (ناف) کښې دَ حشفے په دخول سره غسل نه لازمیږی او دَ پیکاریے[3] په دخول سره هم غسل نه لازمیږی -

**مسئله**[4] :- که هلک نابالغ ؤ - او ؤ دَ لسو کالو او ښځه ئے بالغه وه - دَ هغه سره ئے جماع وکړه - نو په ښځه غسل لازم شه - او په هلک لازم نه شے لیکن دَ عادت اخستلو دَ پاره به ورته حکم دَ غسل کیږی - او دارنګ که هلک بالغ ؤ - او ښځه ئے نابالغه وه - خو دَ جماع قابله وه - جماع ئے ورسره وکړه - نو په ده غسل لازم شه - او په ښځه لازم نه دے - بلکه مستحب دے -

**مسئله**[5] :- دَ جنابت دویم سبب انزال دے - یعنے منی دَ خپل اصلی ځائے نه په شهوت سره جدا کیدل او باهر وتل - برابره خبره ده چه په جماع سره وی - او که صرف په خیال او په تصور کولو سره - او که په بله ذریعه - او په ویښه وی - او که په خوب کښې -

**مسئله**[6] :- که منی دَ خپل اصلی ځایه په شهوت سره جدا شوه لیکن دَ بهر وتلو دَ ځائے نه بے شهوته راووته - مثلاً دَ سړی کار تمام شه - نو خپل شے ئے مضبوط ونیوُ - چه شهوت ئے ختم شه - بیا ئے پریښود - منی تے بے شهوته راووته

[1] در مختار و شامی ۱۲ [2] قاضیخان ۱۲ [3] مراقی الفلاح ۱۲ [4] منیه وخانیه ۱۲ [5] هدایه ۱۲ [6] عالمگیری ۱۲

نو هم یې غسل فرض شه۔

مسئله[1] :- که ډیر د بولو نه پس ئې مني اووته۔ په شهوت سره۔ او شی ئې ولاړه وُ۔ نو غسل یې فرض شه۔

مسئله[2] :- که انزال یې وشه۔ بیا یې منیا زے وکړے۔ یا خلو ببنت قدمے واخسته۔ یا اوده شه۔ بیا ئې غسل وکه۔ پس د غسل نه ئې مني اووته بے شهوته نو په دے سره بل غسل نه لازمیږی۔ او که د غسل نه مخکښې د انزال نه پس ئې لا نه وایه بول کړی وُ۔ نه څلو ببنت قدمه ګرځیدلے وُ۔ نه اُوده شوے وُ۔ غسل ئې وکه۔ د غسل نه پس ئې بیا مني اووته بے شهوته نو په دے سره وړمبے غسل بے کاره شه۔ یعنے وس به بیا غسل کوی۔ او په مخکنی غسل که ئې مونځ کړے وی۔ هغه شوے دے۔ راګرځولو ته ئې ضرورت نشته۔ او که دا واقعه ښځې ته پیښه شوے وه۔ نو د هغې هم دا حکم دے۔ لیکن که هغې ته معلومه وی چه دا مني ئې د خاوند هغه ده۔ کومه چه په هغې کښې پاتے شوے۔ نو د دے مني په وتلو سره په ښځه باندے غسل نه لازمیږی۔ نو دیم ته ضرورت نشته۔

مسئله[3] :- که چادروند پیټے اوچت که۔ یا د برے نه راولویږی۔ یا چا اووهه په دے وجه ئې مني اووته بے شهوته۔ یا د څه مرض په وجه۔ نو په دے سره غسل نه لازمیږی۔ او اودس یې ماتیږی۔

فائده[4] :- مني۔ مذی۔ ودی۔ دا درے څیزه دی۔ د شوق په وخت کښې چه کوم اوبه اوځی۔ او په هغې سره شهوت نور زیاتیږی۔ هغې ته مذی وائی۔ او دا په ښځه کښې زیات وی د سړی نه۔ او کومے اوبه چه د ختمیدو په وخت کښې وځی۔ او د هغې نه پس شوق مړشی۔ هغې ته مني وائی۔ بل فرق په دوایو کښې دا دے۔ چه مني ټینګه وی۔ او مذی نرۍ وی۔ او ودی هغه اوبه دی چه ډیرو په شان وی۔ او بوئ نه لری۔ او د ډیر د بولو نه پس ځی۔ او کله کله مخکښې۔ نو د مذی او ودی په وتو سره غسل نه لازمیږی۔ او اودس یې ماتیږی۔

مسئله[5] :- که څوک د خوبه پاسیږی۔ احتلام ورته یاد وُ۔ او لذت ورته هم یاد وُ۔ لیکن د لوند والی څه اثر ئې وُنه مونده۔ نو غسل یې نشته۔

مسئله[6] :- که دوه سړی یا دوه ښځے۔ یا ښځه خاوند هسے یو ځائے ملاست وُو۔

---

[1] بحر الرائق. عالمگیری. محیط ۱۲ [2] شامی ۱۲ [3] غنیه ۱۲ [4] مراقی الفلاح ۱۲ [5] هندیه ۱۲ [6] شامی ۱۲

چه دَ خوبه راپاسیدل - په بستره ئے منی ولیده - پته نه لګیده - چه دکوم یوده - او په دے دواړو کښې یو ته هم احتلام یاد نه ؤ - نو غسل په دواړو واجب دے - اوکه دَ دے نه مخکښ په دغه بستر څوک ملاست ؤ - او منی وچه وه - بیا په دے دواړو کښې په یو هم غسل واجب نه دے۔

**فائده**[۱] :- دَ سړی منی ټینګه وی - او دَ ښځے نرۍ به - او دَ سړی منی سپینه وی او دَ ښځے زیړه - نو په مذکوره مسئله کښې بعضے عالمانو دَ دے فرق اعتبار هم کړے دے - او بعضے وائی چه طبیعتونه مختلف دی - او په عنا کانو سره هم اثر پریوځی - نو دَ دے فرق اعتبار ئے نه دے کړے۔

**فائده**[۲] :- که څوک دَ خوبه پاسیده - په خپل بدن یا په جامه وغیره ئے څه لوند والے ولیده - نو په دے کښې څوارلس[۳] صورتونه دی۔ ځکه چه یا به ئے یقین وی چه دا منی ده - یا به ئے یقین وی چه دا مذی ده - یا به ئے یقین وی چه دا ودی ده - یا به ئے شک وی چه دا منی ده او که مذی - یا به ئے شک وی چه دا منی ده او که ودی - یا به ئے شک وی چه دا مذی ده او که ودی - یا به ئے په درے واړو کښې شک وی نو دا اووه صورتونه شو - او په هر یو صورت کښې به ورته یا احتلام یعنی دَ شیطان خطاکول یادوی یا نه - نو ټول څوارلس[۴] صورتونه شو - دَ دے صورتونو حکم به په راتلونکے دوؤ مسئلو کښې بیان شی۔

**مسئله**[۳] :- که یقین ؤ چه دا منی ده - او احتلام ورته یاد ؤ - یا یقین ؤ - چه دا منی ده - او احتلام ورته یاد نه ؤ - یا یقین ؤ - چه دا مذی ده او احتلام ورته یاد ؤ - یا یقین ؤ - چه دا مذی ده - او احتلام ورته یاد نه ؤ - یا شک ؤ - چه دا منی ده او که مذی - او احتلام ورته یاد ؤ - یا شک ؤ - چه دا منی ده او که مذی او احتلام ورته یاد نه ؤ - نو په دے شپږو صورتونو کښې غسل فرض دے - او د اړنګ[۵] که شک ئے ؤ - چه دا منی ده - او که ودی - او احتلام ورته یاد ؤ - یا شک ؤ - چه منی ده او که مذی او احتلام ورته یاد نه ؤ - یا شک ؤ - چه مذی ده او که ودی - او احتلام ورته یاد ؤ - یا شک ؤ - چه دا منی ده او که مذی ده او که ودی - او احتلام ورته یاد ؤ - یا احتلام ورته یاد نه ؤ - نو په پنځو واړو صورتونو کښې هم غسل فرض دے۔

**مسئله**[۶] :- که یقین ؤ چه دا ودی ده - او احتلام ورته یاد ؤ - یا یقین ؤ چه دا ودی ده - او احتلام ورته یاد نه ؤ - یا شک ؤ - چه دا مذی ده - او که ودی

---

[۱] شامی ۱۲ [۲] شامی ۱۲ [۳] شرح التنویر و شامی ۱۲ [۴] کبیری ۱۲ [۵] شامی ۱۲

او احتلام ورته یاد نه وُ - نو په دے دریو صورتونو کښې غسل فرض نه دے - دا څوارلس صورتونه سره د حکمونو[1] په دے نقشه[2] کښې ذکر دی -

| شمار | صورت د مسئلې | حکم د مسئلې |
|---|---|---|
| ۱ :- | یقین ئے وُ چه دا منی ده او احتلام ورته یاد وُ - | حکم د دریو وارو اماما نو صاحبانو په نزد غسل واجب دے - |
| ۲ :- | یقین ئے وُ چه دا منی ده او احتلام ورته یاد نه وُ - | حکم د دریو وارو اماما نو صاحبانو په نزد غسل واجب دے - |
| ۳ :- | یقین ئے وُ چه دا مذی ده - او احتلام یاد وُ - | حکم د دریو وارو اماما نو صاحبانو په نزد غسل واجب دے - |
| ۴ :- | یقین ئے وُ چه دا مذی ده او احتلام یاد نه وُ - | په شامی کښې وائی چه غسل واجب نه دے - اتفاقاً - لیکن کبیری راوړیا دی چه واجب دے په نزد د طرفینو - |
| ۵ :- | یقین وُ چه داودی ده او احتلام یاد وُ - | غسل واجب نه دے اتفاقاً - |
| ۶ :- | " " او احتلام یاد نه وُ - | " " |
| ۷ :- | شک وُ چه دا منی ده او که مذی او احتلام یاد وُ | غسل واجب دے اتفاقاً - |
| ۸ :- | شک ئے وُ چه دا منی ده او که مذی - او احتلام یاد نه وُ | په شامی کښې وائی چه واجب دے په نزد د طرفینو - او په کبیری کښې وائی واجب دے اتفاقاً - |
| ۹ :- | شک وُ چه دا منی ده او که ودی او احتلام یاد وُ - | واجب دے اتفاقاً - |
| ۱۰ :- | " " او احتلام یاد نه وُ | واجب دے په نزد د طرفینو - |
| ۱۱ :- | شک وُ چه دا مذی ده او که ودی - او احتلام یاد وُ - | واجب دے اتفاقاً - |
| ۱۲ :- | " " او احتلام یاد نه وُ - | واجب نه دے اتفاقاً - |
| ۱۳ :- | شک وُ چه دا منی ده او که مذی ده او که ودی او احتلام یاد وُ - | واجب دے اتفاقاً - |
| ۱۴ :- | " " " " " او احتلام یاد نه وُ | واجب دے په نزد د طرفینو - |

[1] په دے کوم مسئله کښې چه اختلاف دے په هغے کښې د احتیاط د پاره فتوی د طرفینو په قول ده - [2] کشف الاستار و شامی ۱۲

**مسئله**[۱] :- که سړے د خوبه پاسیدو- په خپل ذکرئے لوند والے ولیدو- شک ئے شه چه دا منی ده که مذی- او احتلام ورته یاد نه وُ- نو که د خوب نه مخکښے ئے ذکر منتشر نه وُ- غسل پے لازم دے- لکه چه مخکښې بیان شو- او که منتشر وُ- نو لازم پے نه دے- نو دا صورت مستثنیٰ شه- لیکن که یقین ئے راغے چه دا منی ده- یا احتلام ورته یاد شه- یا په ملاستے اوده شوے وُ- نو غسل پے لازم دے- البته په دے آخری صورت کښې د بعضو عالمانو بحث شته-

| د غسل طریقه او نورے مسئلے |
|---|

**مسئله**[۲] (۸۶) :- غسل کونکی له پکاردی چه اول نیت وُکی او د تبرک د پاره بسم الله اووائی- دواړه لاسونه د مړوندو پورے وینځی- بیا استنجا وُکی دواړه اولوبه- برابره خبره ده- چه پلیتی پے وی- او که نه- بیا که د بدن په څه ځائے څه پلیتی لګیدلے وه- هغه وُ اینځی- بیا باقاعده اودس وُکی- که په تخته یا په ګټه ئے لمبل- نو د اودس کولو په وخت کښې دِ خپے هم وُ اینځی- او که ځائے داسے وُ چه خپے ښخا کیږی- ورستو به ئے بیا اینځل غوښته- نو تور اودس دِ وُکی- خپے دِ هم مره نه اینځی- د اودس نه پس دِ په سر اوبه واړوی- درے ځله- بیا په ښئی اوږه درے ځله- بیا په ګسه اوږه درے ځله- بیا په تور بدن په دے شان سره چه په ټول بدن اوبه بنه اوبهیږی- او په اول ځل دِ لاس هم په بدن راکاګی- د پاره د دے چه اوبه ورته ښے وُرسی- او څه ځائے وُچ پاتے نشی- او ځان دِ اومږی- بیا د لمبلونه وُرستو دِ په یو پاک ځائے باندے خپے وا اینځی- او که د اودس کولو په وخت کښې ئے خپے اینځلے وے- او پاکے وے- نو اوس بیا خپو اینځلو ته ضرورت نشته- د لمبلو دا طریقه چه بیان شوه سنت طریقه ده- په دے کښې ځینے څیزونه فرض دی- چه د هغے په پریښودلو سره غسل نه کیږی او ځینے سنت دی- ځینے مستحب-

**مسئله**[۳] :- په فرض غسل کښې فرض فقط درے څیزه دی- یو ځل خوله ګنګالول په داسے طریقه چه ټولے خولے ته اوبه وُرسی- یعنے غرغره- یو ځل پوزے ته په ښه شان سره اوبه اچول- د کومے پورے چه د پوزے نرمه غوښه ده- یو ځل په ټول بدن اوبه اچول-

**مسئله**[۴] :- په غسل کښې ...... استنجا کول- نجاست حقیقی

---

[۱] شامی ومنیة المصلی ۱۲ [۲] در مختار و شامی ۱۲ [۳] هدایه ۱۲ [۴] در مختار و شامی ۱۲

که په بدن نښتلی وی - هغه لرے کول - بیا اودس کول[3] - بیا په ټول بدن اوبه اچول په دے طریقه چه مینه په سر بیا په ښۍ اوګه - بیا په چپه - بیا په نور بدن - او په نیت او په بسم الله سره شروع کول - او مسواک وهل - او خلال او مږل وغیره چه په اودس کښ سنت دی - هغه په غسل کښ هم دی -

مسئله[1] :- که غسل کونکے په جاری اوبو کښ یا په باران کښ په قدر د اودس او دَ غسل حصار شه - په ټول بدن ئے اوبه ښه اوبهیدے - نو سنت ئے کامل شه دارنګ که په لوے حوض کښ ئے لمبل - او مذکوره مقدار پکښ حصار شه - او ځان له ئے حرکت هم ورکاؤ - یا قدم ئے اخست - په دے سره هم تکمیل دَ سنت کیږی -

مسئله[2] :- په غسل کښ دِ په اوبو اچولو کښ ډیر زیاتے نه کوی - او هیڅ کے دِ هم نه کوی - قبلے ته دِ نه مخ کوی - خبرے دِ نکوی - بلکه څه دعا دِ هم نه لولی - په داسے ځائے کښ دِ غسل کوی - چه څوک ئے نه ویني - پس دَ غسل نه دِ تولیه وغیره په ځان را کاږی - او که ښځے ئے نه وی ایښے - نو دَ جامو اغوستلو نه پس دِ دا ایښی -

، مسئله[3] :- که چالنګ وهلے وُ - او لمبل ئے - نو قبلے ته په مخ کولو کښ بدی نشته -

مسئله[4] :- که داسے ځائے ئے لمبل چه دَ چا نظر پے نه لګیده - نو لغړ لمبل ورله جائز دی - ورنه نه دی جائز - لیکن که غسل پے فرض وُ - او دَ پردے څه ځائے نه وُ - او څه داسے زړوکے وغیره هم نه وُ - چه پرده پے وکی - هیڅ انتظام ئے نشه کیدے - سړے وُ په سړو کښ - یا ښځه وه په ښځو کښ - نو دَ هغوی په مخکښ دِ ولامبی - او که دغه ځائے ښځے هم وے - او نارینه هم وُو - نو نه دِ لامبی - صبر دِ وکی - او مونځ دِ اداکی په تیمم سره - خو په دے[5] مسئله کښ اختلاف شته - ځکه چه حینے عالمان وائی چه سړے دِ دَ سړو په مخ کښ هم نه لامبی - او ښځه دِ دَ ښځو په مخکښ هم نه - بلکے موقعے ته دِ صبر وکی - او مونځ دِ په تیمامه وکی - او چه مونځ ئے په تیمامه[6] وکه نو اے پس دَ لمبلو نه به بیا دغه مونځ راګرځوی او که نه - په دے کښ هم اختلاف دے - نو ښه داده چه دَ احتیاط دَ پاره ئے راګرځوی -

[1] درمختار و شامی ۱۲ [2] منیه ۱۲ [3] غنیه ۱۲ [4] درمختار و شامی ۱۲ [5] کبیری ۱۲ [6] شامی ۱۲

**مسئله**[1] :- که څوک دَ یخنئ په غرض باران ته ودریږي - یا حوض ته ولویږي او ټول بدن ئې ښه لوند خوشت شه - او خوله ئې ښه کنکال کړه - او پوزې ته ئې هم اوبه واچوې - نو غسل ئې وشه - دَ جنابت نه او وت - اگر که ثواب ئې نه دے شوے ثواب حاصله کیږي - چه سړے دَ پاک کیدو دَ پاره نیت دَ غسل وُکي - او ولا مبي -

**مسئله**[2] :- که چا غسل دَ جنابت وکه - او په بدن کښې ئې دَ ویخته همره ځائے وُچ پاتې شه - یا خولے ته ئې اوبه اچول هیر شو - یا پوزې ته - نو غسل ئې وُنشه - دَ جنابت نه وُنه وت - لیکن وُس چه پس دَ غسل نه ورته یاد شو - بیا سر دوباره غسل کولو ته ضرورت نشته - بلکه په هغه وُچ ځائے دِ اوبه واچوي - او که خوله کنکالول ئې هیر شوي وُ - نو وُس دِ کنکال کي - او که پوزې ته اوبه اچول ئې هیر شوي وُ - وُس دِ داچوي - نو غسل ئې وُشه - او که دَ دے نه مخکښې ئې په دغه غسل مونځ کړے وي - هغه نه دے شوے -

**مسئله**[3] :- که ځائے وُچ پاتې شه - نو وس دَ هغې صرف لمدول کافي نه دي بلکې اوبه دِ پې اوبهوي - او که دَ بل اندام دَ اوبو نه ئې په هغه ځائے واچولے - او وُمخښې لے نو په غسل کښې دا هم کافي کیږي -

**مسئله**[4] :- که دَ لمبلو په وخت کښې ئې خوله نه وه کنکال کړے - لیکن اوبه ئې په کُله خوله وُسکې - او اوبه ټولے خولے ته اورسیدے - نو غسل ئې پوره شه - نی خوله کنکالولو ته ضرورت نشته - هاں - که اوبه ئې په دے طریقه وُسکې چه ټولے خولے ته وُنه رسیدے - دا کافي نه دي - بلکې خوله دِ ښه کنکال کي -

**مسئله**[5] :- که په نوکو نو کښې ئې وړه مختي اوچ شوي وُ - دَ هغې لاندے اوبه وُنه رسیدے - نو غسل نه دے شوے - چه ئې یاد شي هغه دِ لرے کي - او اوبه دِ پې واچوي - نوي غسل ته ضرورت نشته -

**مسئله**[6] :- ښځه چه لاسي - نو کوټه - ټکړي وغیره دِ ښه وکرخوي - او کوټي زیاره دَ دے چه دَ هغې لاندے اوبه وُرسي - هاں که دومره ارت وي - چه بے دَ جنبش ورکولو نه هم دَ هغې لاندے اوبه رسیدے - بیا ئې خوزول لاخوزول ضروري نه دي بلکه مستحب دي - او دا رنگ حکم دے دَ میچکي او دَ ورېلو - او دَ ښتکیه او دَ مُحَندرو وغیره - او که کاڼے ئې ایستلي وُ - په پوزه یا په غوږ ئې هیڅ نه وو - نو هم دِ په سورو

---

[1] غنیه ۱۲ [2] کبیری و شرح التنویر ۱۲ [3] تنویر الابصار ۱۲ [4] خلاصة الفتاوی ۱۲ [5] کبیری ۱۲ [6] شرح التنویر ۱۲

او به او بیوی - چه وُرسی - او په اوبو رسولو کښې دَ ډکی و هلو ته ئې ته ضرورت نشته -

**مسئله** :- که دَ چا دَ ستر کو نه چخې راوتی وُو - او با هر دَ ستر کو په کونجونو وغیره داسې وچ شوی وُو - چه وس که ئې وُنه کړه وی - او نه به ئې او به وُنه رسی نو دَ هغې کړول او لرې کول واجب دی - بې دَ لرې کولو نه ئې نه او دس کیږی نه غسل -

**مسئله** :- که په غاښونو کښې ئې څه شه نښتې وُ - نو په خلال دِ راوباسی او هغه ځائې ته دِ اوبه ورسوی - که اوبه و نه رسیږې - نو غسل به وُنشی

**مسئله** :- که په وِیښتو یا په بدن ئې تیل پورې کړی وُو - او اوبه ئې په ځان وا چولې - خو بدن دَ غوړوالی په وجه ئې نه تبلوشې - نو خیر دے - چه بره بدن ئې او به وا چولې - او خوله ئې کنګال کړه - او پوزې ته ئې او به بښه وُرسوی - نو غسل وُشه -

**مسئله** :- په بدن کښې دَ کوم ځائې په ایښکلو کښې چه حرج نشته - هغه ټولو ته او به رسول ضروری دی - لکه غوږ - نوم - بریت - وروز - بڼه دَ سر ویښته وغیره - نو که دَ ښځې سر پرانستے وی - نو په ټولو ویښتو او به اچول او دا زنګ دَ هغې جرړو ته او به رسول فرض دی - که یو ویښته یاد ویښته جرړ وچ پاتې شه - غسل به وُنشی - او که سر ئې نه وی پرانستے - بلکه وُدلے وی - نو دَ ویښتو جرړو ته او به رسول ضروری دی - او دَ ویښتو لمدول ضروری نه دی - او که بې دَ ویښتو پرانستلو نه جرړو ته او به نه رسیږې - نو پرا نستی ویښته دِ هم وا ینځی - بیا دا دواړه ضروری دی - او که دَ سړی لونګ وی سر وُ - نو برابره خبره ده - چه وُدلے وی او که نا وودلے - په هر حال کښې ضروری ده چه دَ ویښتو جرړو ته هم او به وُرسوی - او په ویښتو هم او به وا چوی -

**مسئله** :- که ښځې له په سر او به اچول بد وُ - نو په سر ئې دِ نه چولے او په نور ټول بدن ئې دِ واچولے - نو غسل ئې وشه - لیکن چه جوړه شی - بیا دِ سر هم وا ینځی - او دوباره دغه غسل کولو ته ضرورت نشته -

**مسئله** :- که وُرزهم دَ چیچ وه - هم دَ اختن - او سړی غسل دَ جنابت کا دَ

---

۱ منیه ۱۲ ۲ شامی ۱۲ ۳ شرح التنویر ۱۲ ۴ درمختار و شامی ۱۲ ۵ درمختار ۱۲ ۶ شرح التنویر ۱۲

نو دایوٗ غسل د دریوٗ واړو د پاره کیدے شی - نو نیت دِ د دریوٗ واړو دکی - چه ثواب ئے وُشی -

**مسئله:** - که په ښځه غسل د جنابت واوختنید - لا لمبلی ئے نه وُو - او حیض ئے شروع شه - یا شروع وُ - او احتلام ئے وُشه - نو د حیض بندیدلو نه پس چه غسل وکی - هغه کافی دے -

**مسئله:** - ښځه چه لامبی نو د فرج خارج یعنے د وړو ټولو د ځائے د بادائی ځے اینځل هم فرض دی - اوکه سرے ناسنته وُ - لمبل ئے - او د څوپے په بیرته کولو کښی ورته تکلیف نه وُ - نو د دننه حصے اینځل ئے هم فرض دی - اوکه سړی نه دا ... کران وی نو بیا مستحب دی -

| د ... او د لوئے بے او ... ئے احکام |
|---|

**مسئله:** - که په چا غسل د جنابت فرض شوے وُ ... او لمبلی ئے نه وُ - یا ښځه وه - زړوکی ئے بیلمازه وُو - نو د کعبے طواف وله ... دے - او جمات ته ننوتل ورله هم حرام دی - لیکن که سخت ضرورت ئے وُ نو بیا جا ... ئزه ده - لکه د کور دروازه ئے په جُمات کښی وه - او د دے نه سوا بله لارے د وتو نه وه - او بے د دغه ځائے نه بل ځائے وُسیدے هم نشته - یا یوٗ مسافر سرے وُ - غسل پے ... وختنید - او په جُمات کښی د او بو چینه وه - یا کوهے وُ - یا حوض وُ - او بل ځائے او به نه موند ... ے - نو ده له هم جائزه ده - چه تیمّم دکی او جمات ته ورشی -

**مسئله:** - که په چا غسل د جنابت واوختنید - یا د ښځے زړوکی بیلمازه وُو - یا څوک هسے بے اودسه وُ - نو د دوئ له قرآن شریف له لاس دروړل جائز نه دی - او په لستونړی ... لنے نیول ئے هم جائز نه دی - هاں که د بدن د جامونه سوائے په بل زړوکی یا په څه روما ... وغیره ونیوٗ - یا قرآن شریف په کڅوړه کښی نخښتے وُ - یا قرآن شریف ته کمیس اغو ... ستلے شوے وُ - او کمیس د تابو سره نه وُ گنډلے - یعنے ایستلے کیدے شه نو په داسے ... حال کښی ورله لاس وروړل او نیول جائز دی - او دا رنګ که په تعویذ یا په څه روپئ یا په څه بل شی آیت لیکلے شوے وُ - نو د هغے نیول ورله هم جائز نه دی - خو ناليکلی ځائے له لاس دروړل چه لاس ئے په خط نه لګی -

له بحرالرائق ... شامی ۱۲ ته در مختار ۱۲ ته د وړے بے اودستئ نه مراد بے وضوئی ده - او د لوئے بے اودسئ نه مراد هغه ... نی پلیتی ده - چه سبب ئے جنابت او حیض او نفاس دے - اول ته حدثِ اصغر وئیلے شی دویم ته حدثِ اکبر ۱۲ ته ردالمحتار ۱۲ ته شرح البدایة ۱۲ ته د بعضے عالمانو اختلاف پکښی شته ۱۲ ته شرح التنویر و شامی ۱۲

جائز دی - لیکن داهم ښه نه ده - اوکه روپئ په بټوه کښې وه - یاپه بل څه شي کښې نو هغه اوچتولے شي۔

مسئله[۱] :- دَ بے اودسئ په حالت کښې قرآن شریف او سپاروله لاس وړل جائز نه دی - برابره خبره ده چه په نالیکلی ځائے لاس لګوی - اوکه په لیکلی - او ځینے عالمان وائی چه نالیکلی ځائے له لاس وروړل جائز دی - خو دَ اِحتیاط خبره مخکښے ده -

مسئله[۲] :- دَ لوئے بے اودسئ په حالت کښې قرآن شریف لوستل جائز نه دی - اګر که یو آیت وی - اوکه ښځے دَ ورکو په حالت کښې ورته سبق وایه - نو په پیزودے ورته وائی - په خوَیه دِ پوره آیت په یو سانه لولی - بلکے دَ یوے یوے یا دَ دوؤ دوؤ کلمونه پس دے سا ماته وی - نو دا جایزه ده - او دارنګ که دے قرآن شریف له لاس نه وروړو - او په ړکی ئے دَ هغے پانړے اړولے - دا هم جائز دی - او دارنګ[۳] حکم دَ جنابت هم دے -

مسئله[۴] :- دلوئے بے اودسئ په حالت کښے درود شریف لوستل - دَخدائے پاک نوم اخستل - دَدعا ایتونه په نیت دَدُعا لوستل - استغفارکول داټول جائز دی - خو په نیت دَ تلاوت ورله قرآن شریف لوستل جائز نه دی - که په یادوئے لولی - هم نه دی جائز - اوله قرآن شریف نه ئے هسے کتل - لوسته ئے نه - نو په دَے کښې بدی نشته - اوکه په حالت دَ جنابت کښې ئے قرآن شریف لیکه - یائے سپاره لیکله - او په میز یا په بالخ وغیره ئے ځان نه مخی وُ - او په لیکلی ځائے ئے لاس نه لګیده - اولوسته ئے هم نه - نو امام ابویوسف رح صاحب وائی چه دانا جائز نه دی - اوامام محمّدؒ صاحب وائی چه ناجائزدی۔

مسئله[۵] :- په حالت دَجنابت کښې نوکونه پریکول - دَ نامه نه لاندے ویښته اخستل - دارنګ دَ بل ځائے ویښته لرے کول مکروه دی۔

مسئله[۶] :- که سړی دَ خپلے ښځے سره په [illegible] شپه کښې مثلاً څو څو واره جماع کوله - نو چه په آخر کښې [illegible] وی - دایو غسل کافی دے - لیکن غوره دا ده - چه دَ هر دوؤ په مینځ کښې هم اودس وکی - یا اودس وکی - او بعضے عالمان وائی چه دَ احتلام نه پس که ئے دلمبلو نه بغیر جماع وکړه - نو دے نه چه بچے

---

[۱] بحرالرائق ۱۲ [۲] عالمګیری ۱۲ [۳] شامی ۱۲ [۴] شرح التنویر وردالمحتار ۱۲ [۵] فتاوی هندیه ۱۲ [۶] شامی ۱۲

بیاکیږی اکثر ایومنے دی یا بخیل۔

مسئلہ :۔ کہ پہ کورکښ قرآن شریف پروت وُ مستور۔ او سړی دَ خپلے ښځے سره جماع کوله۔ پہ دے کښ هیڅ بد ی نشته۔

مسئلہ :۔ کہ غسل یے دَ جنابت وُ۔ او څه څیز پل ټکل ئے غوښتنه۔ نو مینه دِ لاس وینځی۔ خوله دِ کنګال کی۔ هله دِ څیزی ټکی۔ او کہ بغیر دَ دے نه ئے څه اوخوړل یا وڅکل نو هم جواز شته۔

متفرقے مسئلے | کہ اودس ئے نہ وُ۔ اودَ حدث اکبر نه پاک وُ۔ نو لکہ چه مخکښ بیان شوی دی۔ ده له هم بے دَ څه غلاف وغیره قرآن شریف له لاس وروړل نه دی جائیز۔ البته اوستل ورله جائیز دی۔ خو غوره داده چه با اودسه ئے لولی۔

مسئلہ :۔ نابالغ چه قرآن شریف والی۔ کہ هغه ورله بے اودسه لاس وروړی خیر دے۔ بدی پکښ نشته۔

مسئلہ :۔ کہ دَ قرآن پاک پاڼے خیرنے شوے۔ او لوستو نه اووت نو هسے دِ نه غورځوی۔ پہ څه پاک ټوکی کښ دِ ونغاړی۔ او پہ داسے ځائے کښ دِ ښخ کی۔ چه څوک پے ځی راځی نه۔ غوره داده۔ چه دَ پړے قبر ورله وکنی۔ یا هسے ځائے خورتنه دِ دَ قرآن شریف دَ پاسه څه چت جوړ کی۔ پہ هغه دِ خاورے واړه وی۔ خو پہ قرآن شریف دِ خاورے نه اړوی۔

مسئلہ :۔ کہ شرعی کتاب دَ استعمال نه اووت۔ او بیکاره شه۔ نو دَ هغه حکم دادے۔ چه دَ خدائے پاک او دَ رسول اودَ فرشتو نومونه وغیره دِ ئے وران کی۔ باقی دِ وسیزی۔ یا دِ ټول بیننده او بوته او غورځوی۔ یا دِ دفن کی۔

مسئلہ :۔ دَ سر دَ لاندے قرآن شریف یا بل شرعی کتاب کیښودل مکروه دی۔ لیکن کہ دَ غلا یره وه۔ نو خیر دے۔ دارنګ دَ کتاب دَ پاسه مشوانړ کیښودل مکروه دے۔ لیکن کہ دَ لیکلو دَ پاره ئے دَ کیښودلو ضرورت وُ بیا باک نشته۔

مسئلہ :۔ پہ کومه روپئ چه آیت دَ قرآن پاک لیکلے شوی وی۔ دَ هغے ولی کول مکروه دی۔ او کہ ماته ئے کړه۔ بیائے پہ ولی کولو کښ څه کراهت نشته۔

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] شرح التنویر ۱۲ [3] مسائل هذا الباب کلها ماخوذة من شرح تنویر الابصار

**مسئله** :- که په تعویذ کښې څه آیت لیکلې شوے وي - بیا په چیره یا په څه بل شي کښې نغښتې وي - نو د اودس ماتي په وخت کښې او په حالت د جنابت کښې ئې لرل منع نه دي - خو غوره نه دي -

**مسئله** :- د جمات خس و خاشاک - یا بروزه یا بل داسې څه چه بیکاره شي هغه دې په داسې ځائے کښې او غورځوي چه خراب او ګنده نوي -

**مسئله** :- په کوم کاغذ چه څه شرعي بیان لیکلې دي - په هغې کښې څه شے نغښتل نه دي جائز - او که په کاغذ کښې بل څه مضمون وي - نو د هغې نه دې منع رک نو موږه کړے کي - که بیا پکښې څه نغاړي خیر دے -

په کومو اوبو اودس او غسل جائز دے - او په کومو اوبو نا جائز دے

**مسئله** :- د باران - او د خوړ - او د ګلني - او د چینې - او د کوهي - او د حوض - او د دریاب - او د سمندر په اوبو اودس کول او غسل کول جائز دي - برابره خبره ده چه اوبه ئې خوږې وي او که ترخې - او اوره او کنګلے چه ولې شي - د هغې په اوبو هم جائز دي - لیکن ناګله چه ولې شي - په هغه اوبو جائز نه دے -

**مسئله** :- د ونې یا د میوې یا د پانړو نه چه کومې اوبه څڅول شوي او ایستلې شوي وي - په هغې سره اودس کول او غسل کول جائز نه دي - د انګور کومې اوبه چه څڅېږي وانه کښې وي په هغې سره - او د ګلو په رس سره او د ناریل په اوبو سره هم نه دي جائز -

**مسئله** :- که په اوبو کښې څه شے پوخ کړے شي - او په هغې سره د اوبو په دریو وصفونو کښې چه خوند دے او رنګ دے او بوئ دے یو وصف بدل شي - نو په دغه اوبو اودس او غسل جائز نه دے - او که داسې څیز پکښې وایشولے شي چه په هغې سره صفائي ښه کیږي - او د هغې په پخولو سره اوبه ټینګې شوي - لکه د مړي لمبولو د پاره چه په اوبو کښې د بیرې پاڼې پخوي - نو په دے کیږي - لیکن که پانړے دومره زیاتے وي - چه د هغې په وجه اوبه ټینګې شوي - بیا پرې اودس او غسل جائز نه دي -

**مسئله** :- په کومو اوبو کښې چه څه شے ګډ کړے شوي وي - یا پکښې څه شے پخ کړے شوے وي او هغه اوبه ادس داسې وي چه په عام عرف کښې ورته یو اسم اوبه

---

له درمختار ۱۲ ؎ درمختار و شامي ۱۲ ؎ عالمګیري و هدایه ۱۲ ؎ فتاوی خانیه و هدایه ۱۲

نه دیلے کیږی۔ لکه شربت۔ چائے۔ شوروا۔ عرق گاؤزبان۔ عرق گلاب وغیره۔ په هغې سره اودس او غسل نه دے جائز۔

**مسئله**[1]:- دَ کومې اوبو سره چه څه پاک شے گډ شوے وی۔ او په اوبو کښې نه وی پخ کړے شوے۔ او دَ اوبو په نرو والی کښې ئے فرق نه وی راغلے۔ اگرکه دَ اوبو یو وصف ئے متغیر کړے وی۔ بیا ئے هم اودس او غسل جائز دے۔ چه اوبه ورته دیلے شی۔ لکه اوبه دَ سیلاب وغیره۔

**مسئله**[2]:- که زعفران په اوبو کښې حل شو۔ او رنگ دَ اوبو ئے سور شه چه ټوکے وغیره پرې رنگیدے شه۔ نو اودس وغیره پرې نه دی جائز۔

**مسئله**[3]:- که په اوبو کښې پڼې ولویږی۔ او دَ پڼو رنگ غالب دَ۔ او په ئے سیینې کړے۔ نو اودس او غسل پرې جائز نه دے۔ او که پڼې ډیرې لږ وُ۔ چه رنگ ئے مغلوب وُ۔ نو جائز دی یے

**مسئله**[4]:- مړے چه په کومو اوبو لمبولے شوے وی۔ امام محمد صاحب وائی هغه مستعملے اوبه نجسې دی۔

**مسئله**[5]:- کومے اوبه چه مستعملے شوے وی۔ یعنے اودس پرې شوے وی یا غسل دَ پاره دَ طهارت یا دَ پاره دَ ثواب مثلاً۔ نو دغه مستعملے اوبه څکل او خوړل په څه شی کښې کول مکروه دی۔ او بل روایت داد ے چه حرام دی۔ او په دغه اوبو سره اودس او غسل نه شی کیدے۔ هاں پلیتی یعنے نجاست حقیقی پرې اینځلے شی۔

**مسئله**[6]:- که په لنتئ ئے اودس کاوُ۔ او اوبه ډیرے په دمه دمه ټبیسے نو بکار دی چه اوبه زر زر نه راخلی۔

**مسئله**[7]:- دَ اودس کولو په وخت کښې چه دَ مخ یا دَ لاس اوبه ټبیږی او څه لږ ډیر څاڅکی ئے په جامو یا په بدن لګی۔ په دے کښې څه نقصان نشته۔ خو غوره داده۔ چه جائے ځان نه بیئه راغوے کی۔ لکه چه مینه بیان شوی دی۔

**مسئله**[8]:- که ماشوم هلک اودس وکه۔ او دوه مره واړوکے وُ۔ چه عاقل نه وُ۔ نو هغه چه کومے اوبه په مخ وغیره اچولی دی۔ هغه شرعاً مستعملے نه دی۔

**مسئله**[9]:- که سړے پاک وُ۔ او اودس ئے وُ۔ خو دَ تبرک دَ پاره ئے دَ زمزم په

---

[1] هدایه ۱۲ [2] بحرالرائق ۱۲ [3] فتاوی هندیه ۱۲ [4] شامی و عالمگیری ۱۲ [5] بحرالرائق و درمختار ۱۲ [6] منیه ۱۲ [7] شرح التنویر ۱۲ [8] عالمگیری ۱۲ [9] طحطاوی ۱۲ [10] دَ مستعملو اوبو په بابت کښې مختلف روایتونه دی ۱۲

اوبو اودس یا غسل کاؤ۔ نو خیر دے۔ لیکن کوم سړے چه بے اودسه وی۔ هغه دِ د زمزم په اوبو اودس نه کوی۔ او په چا چه غسل اوښتے وی۔ هغه دِ پے غسل نه کوی۔ او په دے اوبو پلیتی اېښل او استنجا کول هم مکروه دی۔ لیکن که مجبور وی۔ سوا دَ دے نه ئے لورے اوبه نه مونده بیا خیر دے۔

**مسئله** :۔ مثلاً په منګی کښې اوبه وے۔ دی ویګه دا ئے په هغې کښې ئے لاس خکته که۔ نو که معلومه وه چه په لاس ئے پلیتی لګیدلے وه۔ نو په دغه اوبو اودس جائز نه دے۔ او که معلومه وه چه پلیتی پے نه وه لګیدلے۔ نو جائز دے۔ او که شک وُ۔ نو که نورے مونده شی غوره دا ده چه په نورو وکی۔ ورله هیڅ اعتبار نشته۔

**مسئله** :۔ بره په چت پلیتی پرته وه۔ باران وشه۔ نا وکئ او بهیده۔ نو دغه اوبه پاکے دی۔ لیکن که پلیتی د نا وکئ په خوله کښې یا هغې ته نژدے پرته وه۔ یا نیمے اوبه یا دَ نیمے نه زیاتے اوبه دَ دغه پلیتئ سره لګیدلے او را بهیدلے۔ بیا دغه اوبه ناپاکے دی۔

**مسئله** :۔ کومے اوبه چه په غرمو تودے شوے وی۔ په هغې اودس وغیره جائز دے۔ هیڅ کراهت پکښې نشته۔ خو ځینے عالمان وائی چه په دغه اوبو سره په بدن کښې دَ سپین داغ پیدا کید وډیره وی۔ نو دَ طب په لحاظ سره وائی۔ غوره دا ده چه پے نه کوی۔

**مسئله** :۔ اوبه په دوه قسمه دی۔ یو جاری۔ بل غیر جاری۔ جاری بهیدونکو اوبو ته ویلے شی۔ او هغه هغه دی۔ چه سړے پکښې اودس کوی نو په دویم ځلے هغه ځیلے مستعملے اوبه لاس له نه رائی۔ او بعضے وائی که نړے وګے یا پا نړوے دَ ځان سره ورله نو بهیدونکے دی۔ او غیر جاری هم په دوه قسمه دی۔ یو کثیر۔ بل قلیل یعنې ډیرے او لږے۔ ډیرے هغه دی۔ چه دَ دَهٔ در دَهٔ په مقدار وی۔ او لږے هغه دی۔ چه دَ دے نه کے وی۔ نو که په لږو اوبو کښې پلیتی پریوځی۔ په هغې سره اودس او غسل جائز نه دے۔ برابره خبره دا چه پلیتی لږه وی او که ډیره۔ او که اوبه ډیرے وے۔ یا بهیدونکے وے۔ نو دغه دَ پلیتئ په پریوتو سره نه پلیتیږی۔ لیکن که پلیتی دومره وه۔ چه دَ هغې په وجه دَ اوبو یو وصف بدل شه۔ یعنې خوند یا رنګ یا بوئ۔ بیا به پے دا اوبه هم پلیتے شی۔ نو اودس وغیره به پے جائز نه وی۔

---

(۳۵)
له منیه وکبیری ۱۳ له منیه ۱۳ که شامی که هدایه ۱۳ ره دپے خپله معلومه شوه په غیر جاری هغه ری چه جاریه

مسئله :- لوئ حوض یعنې حوض چه لس شرعي گزه اوږد دی - او لس گزه پلن او څو هومره وی چه سړے ئے په لپه اوبه را اخلی - لاندے ئے زمکه نه ښکاری - دے ته ده در ده ویلے شی - ولاړے اوبه چه کم نه کم دومره مقدار وی - هغه پیرے دی - که په دے کښې پلیتی پریوته - او هغه داسے وه چه بیا نه ښکاریږه - لکه میتیازے یا شراب وغیره - نو په دغه حوض کښې هرے غاړے ته چه دَ سړی خوښه وی - اودس کولے شی - کوم برابر چه پلیتی پریوتے ده - په هغه برابر هم کولے شی - او که پلیتی دَ دے قسمه وه - چه په نظر راتله - لکه مرې پیشے وغیره - نو کومے غاړے ته چه دغه پلیتی پرته وی - هغے ته دِ اودس نه کوی - بلے هرے غاړے ته چه کوی - خیر دے - او که په ده در ده اوبو کښې دومره پلیتی او غورزیږه - چه دَ پلیتی په وجه دَ اوبو خوند یا رنګ یا بوی بدل شه - نو نجسے به شی - لکه چه بیان شو -

مسئله :- حوض که شلور کوټے وُ - او هرے غاړے ته لس لس گزه وُ - نو ټول مجموعه سل گزه شه - نو که اوږد والے ئے شل گزه وُ - او پلن والے پنځه - یا اوږد والے پنځه ویشت گزه او پلن والے ئے شلور گزه وُ - یا حوض بالکل غونډ وُ - او غونډ والے ئے شپږ دیرش گزه وُ - په دے صورتونو کښې هم دَ حوض ټول مجموعه سل گزه کیږی - نو دا هم دَ ده در ده په حکم کښې دی -

مسئله :- که په حوض کښې اوبه ده در ده دَ مقدار نه کمے پاتے شوے - مثلاً هفت در هفت او په هغے کښې نجاست او غورزیږی - نو نجسے شوے - دَ دے نه پس که دومره بیا اوبه داخلے حوض ده در ده ډک شه - او هغه تے باهر نه وُنه بهیږے - نو دا هم نجسے شوے - اګرکه ده در ده دی - لیکن بعضے عالمان وائی چه وُس پاکے دی -

مسئله :- که په ده در ده حوض کښې ئے اودس کاوه - نو کوم برابر چه په اوبو کښې دَ ده مستعمل شاخکی لګیدلی دی - هغه دِ وُرتوی - هله دِ ئے بیا اوبه اوچتوی - او که بے دَ پرتوله ئے بیا دَ هغه ځائے نه اوبه اوچتے کړے نو هم خیر دے -

مسئله :- که چا په ځنګل کښې چرته لږے اوبه او موندلے - او دَ هغے نجس والے درته نه وُ معلوم - نو اودس کول پے جائز دی - او که تیمم ئے وکه - او په دغه اوبو ئے اودس وُنکه - صرف په دے خیال چه پلیتے به وی - نو دا تیمم صحیح نه دے - مطلب دا دے که یقین یا غالب گمان ئے وُ - چه دا اوبه پلیتے دی - او دس دِ پے نه کوی

له منیه دَ شرح التنویر ۱۲ ؎ در مختار رد المحتار ۱۲ ؎ منیه دَ کبیری - ؎ منیه ۱۲ ؎ منیه ۱۲

اوکه صرف خیال ئې وُ - چه دا اوبه پلیتې دی - نو دا خیال کافي نه دے -

مسئله[1] :- که اوبه دَه دَر دَه وے - او بدبودارے شوے - په سبب دَ دے چه موده ئې ډیره شوې وه - نو پاکې دی - اوکه دَ سړی دا شک وُ چه دا بدبوئی دَ زړوالی په وجه ده - که دَ څه پلیتئ په وجه - نو په دے صورت کښې هم په دغه اوبو اودس وغیره کولے شی - اوکه یقین یا غالب ګمان ئې وُ - چه په دے کښې څه پلیتی پریوتې وه - دَ هغې په سبب ئې بوئی خراب شوے دے - نو نشی کولے پے -

مسئله[2] :- په کوم حشراتو کښې چه بهیدونکے وینه نه وی - لکه مچ - ماشې - سیګه - چیچئ - لړم - یا دَ دے په شان بل حیوان که په اوبو کښې مړ شه - یا بهر مړ شه - او بیا اوبو ته اوغورځولے شه - نو په دے سره اوبه نه ناپاکې کیږی - اوبه پاکې وی اوکه لږ وے - لیکن[3] که چوړے وینه وتلې - او هغه په لږو اوبو کښې مړه شوه - نو اوبه ناپاکې شوے -

مسئله[4] :- دَ کوم حیوان چه پیدائیښت او اوسیدل په اوبو کښې وی - لکه کب - شنګره - کنې کبر وغیره - هغه که په اوبو کښې مړ شو - یا اوبو ته مړ اوغورځولے شه - نو په دے سره اوبه نه ناپاکې کیږی - اوکومه شنګره چه دَ وچې ده - دَ هغې هم دا حکم دے - چه اوبه پے نه پلیتیږی - لیکن که دَ وچې شنګره داسے ده چه وینه پکښې وه - نو اوبه پے ناپاکې شی - او دَ اوبو دَ چینجی لښته داده - چه دَ هغې دَ ګوتو په مینځ کښې پرده لګیدلے وی - او کومه چه دَ وچې وی - دَ هغې ګوتے جدا جدا وی -

مسئله[5] :- که شنګره وغیره په اوبو کښې ریز ریز شوه - نو هم دغه اوبه پاکې دی - اودس او غسل پے جائز دے - خو دَ هغې څکل او دَ خوړلو په شان څه شی کښې ګډول جائز نه دی -

مسئله[6] :- کوم حیوان چه په اوبو کښې اوسی - لیکن پیدائیښت ئې په اوبو کښې نه وی - لکه ایلئ - شینغاړه وغیره که په اوبو کښې مړ شه - نو په دَ دے سره اوبه ناپاکې شوے - اوکه بهر مړ شه بیا اوبو ته اوغورځولے شه نو هم ناپاکې شی

مسئله[7] : که په کوهی یا په حوض وغیره کښې دَ وُنو پانړے وتوییږے - او په اوبو کښې ئې فرق را وسمت - لیکن اوبه هغه شان نرۍ وے - او صرف اوبه ورته

---

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] هدایه ۱۲ [3] شرح التنویر ۱۲ [4] درمختار ۱۲ [5] بحرالرائق ۱۲ [6] تنویر الابصار ۱۲ [7] یعنی په لږو اوبو کښې او دَ لږو اوبو مسائل دا دے چه نه جاری وی او نه دَ جاری په حکم کښې وی ۱۲ [8] فتاوی هندیه وقاضیخانیه ۱۲

ویلے کیږي نو وس پے هم اودس او غسل جائز دے۔

**مسئله**[1] :- په کوم اوبو کښې چه پلیتي پریوتې وي۔ او په دې وجه ئې خوند او رنګ او بوئې بدل شوے وي۔ د داسې اوبو استعمال په هیڅ طریقه جائز نه دے۔ بلکه دغه داسې دي لکه متیازے۔ نه ئې څاروي له ورکول جائز دي۔ او نه په خټه کښې لګول۔ او که دا درې د اوړه وصفه ئې نه وو بدل شوي۔ نو څاروو له ورکول۔ او خټه کښې استعمال جائز دي۔ خو جمات دې نه لیږي۔

**دکوهي بیان** | په کوهي کښې د جوړوالي اعتبار نشته۔ باقي که د ده در ده نه مقدار نه کم و۔ او څه نجاست پرې ولویږي۔ نو کوهے ناپاک شه۔ هله به پاک کیږي۔ چه اوبه ئې ټولے راوویستلے شي۔ او د حیوان حکم به په تفصیل سره په دې باب کښې بیان شي۔

**مسئله**[2] :- که د کوترے یا د زرکے یا د چنچړې یا د بلے داسې مرغئ غول کوهي ته او غورزیدل نو اوبه پرے نه خرابیږي۔ او که د کورنې چرګ۔ بطخې وغیره غول پکښې ولویدل نو کوهے پے ناپاک شه۔ ټولے اوبه ئې راایستل ضروري دي۔ او که د سپي یا د پیشو یا د غوا یا د میښے یا د کډے بیزے متیازے پکښې پریوتې نو هم دا حکم دے۔ چه اوبه ټولے راایستل ضروري دي۔

**مسئله**[3] :- په مخکني باب کښې تیر شوي دي۔ چه کوم حیوان په اوبو کښې پیدا کیږي۔ لکه مچھے۔ ښیځخه وغیره۔ یا پیدا کیږي په وچه۔ خو بیننده وینه پکښې نه وي۔ لکه مچ۔ میږے۔ وغیره۔ په دې سره اوبه نه ناپاکه کیږي۔ د دې نه سوا بل حیوان که په کوهي کښې مړ شه۔ او او پړسید۔ یا وچاوډ۔ وریجید۔ نو ټولے اوبه راایستل ضروري دي۔ برابره خبره ده چه دغه حیوان لوئ وي او که وړوکے۔ نو که مخکښې په کوهي کښې مړ شه۔ او سخا شه۔ وچاوډ۔ هم دا حکم دے۔ او که دغه شان پړسیدلے یا سخا ورته او غورزولے شه۔ نو هم دا حکم دے۔

**مسئله**[4] :- سپي په پښو ورډو کړه۔ وینے ئې کړے۔ خو هغه تے ځان خلاص کړو تښتیده۔ لیکن دغه شان کوهي ته ولویده۔ کوهے ناپاک شه۔ وس که تے پیشو ژوندئ راوایستلے شوه۔ هم د کوهي ټولے اوبه راایستل ضروري دي۔ دا رنګ

---

[1] هندیه ۲/۱ او په شامي کښې ئې نقل کړیدي چه د نجاست په وجه که د اوبو وصف بدل شه۔ نو انتفاع پے جایزه نه ده۔ کنې نو په خټه کښې لګول او څاروو له ئې ورکول جایز دي ۱۲ [2] کبیري د منیه۔ [3] هدایه ددرمختار ۱۲ [4] بحرالرائق ددر ددر ۱۲

که منګک دَ متیازو دَ نالے نه راووت - او دغه شان ولویده کوهی ته - نو کوهے ناپاک شه
اګرکه منګک ته ژوندے راووېستلے شی - هم دکوهی ټولے اوبه ایستل ضروری دی -
اوکه دَ منګک لګئی پرے کړے شوه - او دغه شان کوهی ته اوغورزولے شوه - نو دَ دے
هم دا حکم دے - چه اوبه ټولے راایستل ضروری دی - البته که په پریکړی ځائے
ئے څه جاول وغیره کلکه لګولے شوے وه - چه رطوبت ئے په اوبو کښ نه لګیده - او بیا
لاپر سیده او چاؤدلے نه وه - دغه شان راوېستلے شوه - نو صرف شل[۳] بوکے
ضروری دی -

مسئله[۱] :- که سړے یا بیزه یا سپے یا دَ دے هسره بل حیوان کوهی ته ولویده
پکښ مړ شه - نو ټولے اوبه ئے راایستل ضروری دی - اوکه بیا هسه[۲] مړ شوے وُ -
بیا کوهی ته اوغورزولے شه - نو هم دا حکم دے -

مسئله[۳] :- دَ ټولو اوبو راایستلو مطلب دا دے - چه دومره راووباسی - چه
بیا ئے بوکه دَ ډک پورے هم ډکه نه راوځی -

مسئله :- که په کوهی کښ دومره زیګون وُ - چه دَ هغه ټولے اوبه نه شوے
راایستے کیدے - څومره چه وئے دومره راوتے - نو ډبمنه دِ دَ اوبو اندازه وکی - چه دَ
نجاست لویدو په وخت کښ او په څومره وے - هغه هسره او به دِ ئے راوباسی - او
دَ اندازے طریقے ئے ډیرے دی -

یوه طریقه دا ده - چه اوبو په کوهی کښ چه څومره ځائے نیولے دے - د هغې هسره
جوړا ولوئے ډوغل دے - وکنی - دَ کوهی دَ اوبو نه دِ ډک کی - چه ډک شی - نو وشوه -
بله طریقه دا ده - چه اوبند بانس یا بل شے دِ دَ کوهی ویخ ته وُرسوی - بیا دِ راوباسی
او دَ کوم ځائے پورے چه لوند وی - په هغې دِ نښه وکی - بیا دِ مثلاً لس بوکے دکوهی نه
زر راوباسی - دوباره دِ بانس کوهی ته ښکته کی - وُدِ ګوری - چه وس او به دَ کوم ځائے
پورے دی - په هغه برابر دِ په بانس بله نښه وکی - نو دَ دے دوارو نښو په منځ کښ
چه څومره مقدار دے - دَ بانس دَ کوز سره پورے دِ دَ ۱۰ ر دومره مقدار دَ پاره
لس لس بوکے اوباسی - چه دغه مقدار ونه دَ بانس ختم شی نو وشوه - او بله
طریقه دَ اوبو دَ اندازے دا ده - چه کوم سړی دَ اوبو په کار کښ ماهر وی دا سے دوه
دیندار مسلمانان دِ اندازه وکی - او بعضو عالمانو دَ امام محمدؒ صاحب په قول فتویٰ

[۱] منیه وهدایه ۱۲ [۲] لیکن دَ پاک صاف شهید او دَ غسل ورکړے شوی مسلمان حکم جدا دے - که خدا نخواسته کوهی ته اوغورزولے شه - در مختار ۱۲ [۳] شرح التنویر ۱۲ [۴] منیه دکبیری وهدایه ۱۲

ورکړے ده۔ چه درے سوه بوکے ډاوباسی۔ دوه سوه وجوباً۔ باقی سل استحباباً۔

**مسئله**[۱] :- که حیوان کوهی ته ولویږ۔ پکښی مړ شه۔ یا ورته صړاو غوړ زوړلے شه۔ بیائے راوویستلے شه۔ په داسے حال کښی چه لا پړسیدلے نه وی۔ نو دغه حیوان ته به وکتے شی۔ که منګک وی۔ یا چنچره۔ یا کوپړے۔ یا د دے همره بل څه حیوان۔ نو دیرش بوکے ډ نے راوباسی۔ شل ضروری دی۔ او دیرش پورے غوره اوکه لویه چرګکۍ وه۔ په کومه کښی چه بینده وینه وی۔ د ښخی هم دا حکم دے اوکه چرګه وه یا کوتره۔ یا پیشو یا د دے همره بل حیوان۔ نو شپیته بوکے د اوباسی څلویښت ضروری دی۔ او د شپیتو پورے ایستل غوره دی۔ اوکه بیزه وه۔ یا سپے یا د دے همره بل حیوان۔ نو ټول اوبه ایستل ضروری دی۔ لکه چه مینه بیان شوی دی۔ او کوم حیوان چه د منګک نه لوئے او د کوترے نه وړوکے وی حکم ئے په شان د حکم د منګک دے۔ او کوم حیوان چه د چرګے نه غټ او د بیزے نه وړوکے وی۔ هغه په شان د چرګے دے۔ اوکه لویږی دوه حیوانه وی۔ نو که یوه پیشو وه۔ بل منګک۔ نو د دے حکم په شان د یوے پیشو دے۔ یعنی څلویښت بوکے ایستل واجب دی۔ او د شپیتو پورے مستحب۔ او دوه پیشوګان په شان د بیزے دی۔ او دوه منګکان په شان د یو منګک دی۔ اوکه منګکان درے یا څلور یا پنځه وی۔ نو حکم ئے د یوے پیشو دے۔ اوکه شپږ وی۔ نو په حکم د بیزے کښی دی۔ او دا ظاهر الروایت دے۔ اوکه د شپږ نه کم وی۔ او یو پکښی پړسیدلے یا چاودلے ښکاره شوے وی۔ هم ټولے اوبه راایستل ضروری دی۔ لکه چه مخکښی بیان شوی دی۔

**مسئله**[۲] :- په کوهی چه کومه بوکه پرته وی۔ بوکے ډ د هغې په حساب اوباسی۔ نو که په بله دومره لویه بوکه ئے ایستلے چه په هغې کښی د دغه کوهی د بوکے نه اوبه ډیرے ځائیږی۔ او راایستے ئے۔ نو د هغې حساب ډولګوی۔ مثلاً په لویه بوکه کښی د دغه کوهی د بوکے نه دوچنده اوبه راځی۔ نو دا لویه به یوه په دوه حسابیږی۔ علیٰ هذا القیاس۔

**مسئله**[۳] :- که کوهے ناپاک شه۔ بیائے هغه مقدار اوبه راووییستلے شوے د کوم مقدار چه په شریعت کښی حکم دے۔ نو کوهے پاک شه۔ په کوهی کښی د ننه چه کومے کښتیئ یا دیوالونه وغیره دی۔ د هغې اینځلو ته ضرورت نشته۔ دا رنګ په کومه

[۱] در مختار و مجمع الانهر ۱۲ [۲] هدایه ۱۲ [۳] منیه وکبیری و هندیه ۱۲

بوکه اورسئ چه دااوبه راایستلے شوی دی - دَهغه اینځلوته هم ضرورت نشته - یا
ټول په خپله په اوبو راایستلو سره پاک شو -

**مسئله** :- که حیوان کوهی ته ولویږی - بیا ژوندے اوو یستلے شه - او دا
حیوان نجس العین نه وُ - او دا هم معلومه نه وه - چه دَ پرېوتلو په وخت کښې
پے څه پلیتی وه - نو کوهے پے نه پلیتیږی - هاں که دَ حیوان خولے ته اوبه تلے وسے
بیا به جوټے ته کتے شی - چه جوټه پاکه ده - او که پلیته - که جوټه ئے پاکه وه - اوبه
پاکے دی - او که ناپاکه وه - نو ناپاکے - نو که ګمراه بیره یا غوا میښه - یا اوښ یاکونړه
یا بل داسے حیوان کوهی ته ولویږی - او بیا ژوندے راو یستلے شه - نو اګرکه خولے ته
ئے اوبه تلے وسے - کوهے پاک دے - خو شل بوکے دَ تسکین قلب دَ پاره مستحب دی[3]
او که سپے ورته ولویږی - او خولے تہ ئے اوبه تلے وسے - بیا ژوندے راو یستلے شه
نو کوهے پلیت شه - ټولے اوبه ئے راایستل ضروری دی - او که خرکوهی ته ولویږی - او
خولے ته ئے اوبه لاړے - یعنے جوټه ئے په اوبو کښې ګډے وه - بیا ئے ژوندے راویستلے
شه - نو ټولے اوبه ئے اوباسی - ځکه چه اوبه مشکوکے شوے - او که پیشو وه - یا آزاده
چرګه - دَکوهی نه ژوندئ راویستلے شوه - نو څلویښت بوکے مستحب دی - دارنګ که جنب
ورته ولویږی - او څه حقیقی پلیتی پے نه وه - بیا ژوندے اوو یستلے شه - په دے صورت
کښې هم څلویښت یا شل مستحب دی - او که خنزیر ورته ولویږی - نو چه اوبه پے ونګمدے
داپوره ده - اګرکه خولے تہ ئے اوبه نه وی تلے - او اګرکه ژوندے راوو یستلے شی - بیا هم
کوهے پلیت دے - ټولے اوبه ئے راایستل ضروری دی -

**مسئله** :- کوهی ته بوکه لویدلے وه - یو سړے پسے کوزیدل او غوپه کښې
غواړی - نو دے دَ مینه په اوبو سره استنجا وکی - او داسے اودس وکی - چه مونځ پے
صحیح کیدے شی - بله دا چه په بدن ئے څه ظاهری پلیتی نه وی لګیدلی - او جامے ئے هم پاکے
وی - نو هله دَ ورکوز یګی - او په اوبو کښې دَ غوپه خوری - خو صرف په دے نیت چه زه بوکه
رااوباسم - نو چه دے ئے بیا ژوندے را وخی - نو دغه اوبه پاکے دی - او دَدے بیان وجه دا
چه دے که په حالت دَ جنابت کښې وُ - یا تشے بے اودسه وُ - یا ئے ضروری استنجا صرف
په ګټه کړے وه - او به ئے نه دے اچولے - یا په نیت دَ غسل ودضو په شه - نو بیا په کښې
تفصیل دے - او دَ عالمانو اختلاف - او که په بدن یا په جامو ئے پلیتی لګیدلے وه - نو ټولے

[1] درمختار و شامی ۱۲ [2] قاضیخان ۱۱ [3] بعضے وائی چه دَ سپی خولے ته اوبه تلی وی او که نه - کوهے ناپاک
شه ۱۲ [4] ماخوذة من شرح التنویر وغیره ۱۲

او به ناپاکے شوے۔

**مسئلہ**[۱]:۔ په کوم شی سره چه کوټه پلیتیږی۔ دا ضروری ده چه مینه به دغه شے او باسی۔ پس دَ هغې نه اوبه۔ خو هاله که چرے دغه شے په نظر رانلے شه۔ یعنی دا سے نه وی۔ لکه متیازے۔ یا وینه وغیره۔ او که چرے سره دکوشش نه دغه شے دَ کوټې نه راؤ نه ویستلے شه۔ او را ایستل ئے گران وُو۔ نو دَ دغه شی حال ته به گوری۔ که هغه دَ دے قسمه وُو۔ چه په خپله پاک وُو۔ خو دَ پلیتئ په لګیدو سره نجس شوئ۔ لکه نجسه چیرړه یا ناپاکے پیزړے۔ یا بل داسے شے۔ نو دَ هغې حکم دا دے چه کوم وخت ئے اوبه را وییستلے شی۔ دا پوره ده۔ دَ اوبو په را ایستلو سره هغه چیرړه وغیره هم پاکه شوه۔ او که دَ دے قسمه وُو چه په خپله پلیت وُو۔ لکه مړه چنچړه۔ یا مړ منګک یا بل مړ حیوان۔ نو دَ هغې حکم دا دے چه کوټه دِ هغه مره هسے پرېښودے شی۔ ترد ے پورے چه یقین ته وُرسی چه وس به هغه شے پیز مریز شوے او خاورے شوے وی۔ بیا دِ ټولے اوبه را او باسی۔ نو کوټه پاکه شه۔

**مسئلہ**[۲]:۔ که دَ کوهی نه منګک یا بل حیوان مړ راوییستلے شه۔ او معلومه نه وه۔ چه دا کله غورز یدلے دے۔ او تر اوسه پورے پړسیدلے یا چاؤدلے نه وُ۔ موږ به وایُو چه یوه شپه وُرزے شوی دی۔ نو په دغه ځلیږ بیشت ګهنټو کښی چه چا اودس کړے وی۔ او په دغه اودس ئے مونځ کړے وی۔ هغه دِ راؤګرځوی[۳]۔ او چا چه ئے څه جامه یا نور څه اینځلی دی۔ هغه دِ بیا وا بینځی۔ او په دغه اوبو چه کوم ؤړه اغږلی شوی او پخ کړے شوی دی۔ هغه ډوډئ دِ سپونه وا چوی۔ او که حیوان پړسیدلے یا چاؤدلے وُ۔ موږ به وایُو۔ چه درے شپے وُرزے ئے شوی دی۔ نو دَ دریوُ ورزو شپو مونځ نه به راؤګرځوی۔ دا دَ امام اعظم[۴] صاحب قول دے۔ او په دے کښی احتیاط دے۔

**مسئلہ**[۵]:۔ په ناپاکه ؤړه کوټه نه پلیتیږی۔ دا رنګه دَ پیزښه وغیره پیروه پیبه ده۔ یعنی په لږ مقدار۔ برابره خبره ده چه کوټه په ځنګل کښی وی او که په آبادئ کښی۔ او دا رنګه که دَ پیولو شلو په وخت کښی په پیوکښی یوه پچه یا دوه پچے ولو یدلے او لاماتے شوے نه وے۔ او په پیو کښی ئے رنګ هم نه وُکړے۔ چه سمد ستی ئے راؤ لیسے نو په دے سره پیئ هم نه خرابیږی۔ په دے دریوُ واړو صورتو کښی دَ ضرورت دَ رنځے نه شریعت معافی کړے ده۔

---

[۱] در مختار ورد المحتار بحر الرائق ۱۲ [۲] شرح التنویر و منیه ۱۲ [۳] یعنی فرض او وتر وغیره دَ کوم چه قضا شته ۱۲ [۴] بعض وائی چه امام صاحب دے نه رجوع کړے ده ۱۲ منه [۵] در مختار وشامی ۱۲

دَجوټے بيان | **مسئله[1]** :- دَبنی آدم جوټه پاکه ده - نروی اوکه ښځه - مسلمان وی - اوکه کافر - په حالت دَجنابت کښې وی - اوکه په حالت دَحیض یا نفاس کښې وی - او که پاک وی - جوټه ئے په هر حالت کښې پاکه ده - او دارنګ دَبدن خوله ئے هم پاکه ده - لیکن که په لاس یا په خوله ئے څه ظاهری پلیدی لګیدلے وی - نو دَهغے په وجه به ئے جوټه ناپاکه شی - مثلاً چا شراب وڅکل - یائے خوله وینے شوه - او سمدستی ئے اوبه وڅکے - نو دا جوټه او به ئے ناپاکے شوے -

**مسئله[2]** :- کوم ښاروی چه حلال وی - لکه کچه - بیزه - غوا - میښه - وسئے وغیره وغیره - دَدے ټولو جوټه پاکه ده - او دارنګ کومے مرغئ چه حلالے وی لکه زرکه - تارو - ننداره - طوطی - سارانے چړک وغیره وغیره - دَدی جوټه هم پاکه ده - هاں که سړی ته معلومه وی - چه دَدے ښاروی په شونډو یا دَدے مرغئ په مښوکه څه ظاهری پلیتی لګیدلے وه - او دے اوبو ته ئے خوله اچولے وه نو دغه جوټه به ئے ناپاکه وی په سبب دَپلیتئ -

**مسئله[3]** :- دَبد لیوُ جوټه پلیته ده - دارنګ منزرے - شرمښ - ډماتی - کیدړ - ښادو او نور ځناور چه ماتے کوی - دَدے ټولو جوټه پلیته ده -

**مسئله[4]** :- دَسپی جوټه پلیته ده - نوکه په لوښی کښې ئے خوله واچوله - هغه به باقاعده پورے کله اینځلو سره پاک شی - برابره خبره ده چه لوښے دَخاوره وی - اوکه دَبل څه - خو غوره داده چه اووه کله ئے وینځی - او یو کل ئے په خاوره هم او مږی چه ښه صاف شی -

**مسئله[5]** :- دَپیشو جوټه پاکه ده - خو مکروه ده - نوکه نورے اوبه موندے کیدے شوے - دَپیشو په جوټه اوبو دے اودس نه کوی - اوکه نه وی نو خیر دے - وُدِی ئے - او دارنګ حکم دے دَهرهغه جوټه اوبو چه مکروه دی اوکه پیشو منګک اوخوړ - او په دے پسے ئے سمدستی اوبو ته خوله واچوله - نو دَغه جوټه ئے پلیته ده - اوکه خوله ئے ښه څټلے وه - اولږ ساعت پس ئے اوبو ته خوله کړے وه - نو په دے صورت کښې ئے جوټه پلیته نه ده - خو مکروه تنزیهی ده -

**مسئله[6]** :- که انګولے یا پیئ یا بله داسے شے پیشو جوټه کړے و - نوکه غریبی وه - خیر دے وُدِی خوری - دَغریب دَپاره پکښې څه کراهت نشته - اوکه مالدار وی نو په خپله

---

[1] هندیه ومنیه وغنیه ۱۲ [2] شرح التنویر ۱۲ [3] در مختار وهدایه ۱۲ [4] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [5] در مختار وهدایه ۱۲ [6] شرح التنویر وشامی ۱۲

دِ نه خوری۔ چا غریب مسکین له دِ ورکی۔

**مسئله۱** :- دا مکروه دی چه پیشو دَ چالاس یا څه ځائے څټی۔ او دے دِ ته څه نه وائی۔ او دا هم مکروه دی۔ چه پیشو دَ چالاس یا څه ځائے وڅټی۔ او بیا دے به دَ دغه ځائے دَا ئینځلو نه مونځ کوی۔

**مسئله۲** :- کوم مرغان چه ښکار کوی۔ لکه باز۔ باشه۔ شکرے۔ بارئ وغیره وغیره۔ دَ دے جوټه هم مکروه ده۔ لیکن که ساتلے وُ۔ او مردار ه ئے نه خوره۔ او نه دَ هغه په مښوکه دَ څه پلیتئ لګیدو شک وُ۔ نو جوټه ئے پاکه ده۔ څه کراهت پکښی نشته۔

**مسئله۳** :- چرګه چه په کور کښی ګرځی راګرځی۔ پاک پلیت څیزونه خوری دَ هغے جوټه مکروه ده۔

**مسئله۴** :- کوم ژوندی څیزونه چه په کورونو کښی اوسی۔ او بیننه وینه پکښی وی۔ لکه مار۔ مږک۔ چرمخکئ وغیره وغیره۔ دَ دے جوټه مکروه ده۔ او په کوموکښی چه وینه نه وی۔ لکه لړم۔ زمزه۔ مچ۔ مچئ۔ میږے وغیره۔ دَ دے جوټه پاکه ده۔ کراهت پکښی نشته۔

**مسئله۵** :- که مږک دَ ډوډئ نه څه ځائے کرولے وُ۔ نو ښه داده۔ چه هغه برابیرته لرے کی هله ئے خوری۔

**مسئله۶** :- دا مکروه دی چه سړے دَ ښځے یا ښځه دَ سړی جوټه وخوری یا وڅکی۔ ځکه چه په دے سره ناجائز لذت حاصلوی۔ او که دا لذت حاصلیدل پکښی نه وُ۔ لکه دا ورته نه ده معلومه چه دائے جوټه ده۔ یا ښځه ئے خپله ده۔ یا داسے نسبی ئے وه۔ چه نکاح ئے ورسره حرام وُ۔ نو دی له دَ یو بل په جوټه کښی هیڅ کراهت نشته۔

**مسئله۷** :- دَ خره او دَ قچر جوټه او په څو پاکے دی۔ لیکن په دے کښی دَ عالمانو شک دے چه اودس او غسل پے کیږی او که نه۔ نو که په دَ دے جوټه او بو نه ئے نورے او به نشوے موندے۔ نو په دے دِ اودس وُکی۔ او ورسره دِ تیمّم هم وکی هله دِ مونځ کوی۔ او خوښه ئے خپله ده۔ که اودس مخکښ کوی۔ او که تیمّم۔ خو غوره داده چه مخکښ اودس وکی۔ او وروستو تیمّم۔ او که دا او به ورځمه وے او اودس ئے په ونکه یللے تیمّم ئے وُکه۔ او مونځ ئے ادا که۔ بیائے دا او به نورے کړے۔ نو اودس دِ بیا تیمّم وکی

لہ ردالمختار وکبیری ۱۲ ٢ە درمنتقیٰ وشامی ۱۲ ٣ە منیه وهدایه ۱۲ ٤ە درمختار وشامی ۱۲
٥ە درمختار وشامی ۱۲ ٦ە درمختار و ردالمختار ۱۲ ٧ە مجمع الانهر ۱۲

اودغه موضع دِ په دوبیری وکی - اوکه مینه ئے اوبه توئے کړے وے - او دَ هغے نه ئے ورستو تیمّم وکه - او موضع ئے پے اداکه - نو موضع پوره شوے دے - بیا کولو نه ضرورت نشته -

**مسئله** :- دَ کوم حیوان جونه چه نجسه ده - دَ هغه خُوله هم نجسه ده - او دَ کوم حیوان جونه چه پاکه ده - دَ هغه خُوله هم پاکه ده - او دَ خره او دَ قچر خُوله پاکه ده چه په بدن یا په زړوکی ولګی - اینځلو نه ئے ضرورت نشته - لیکن دَ احتیاط دَ پاره ئے که وینځله ډیره ښه ده -

دَ تیمّم مسئلے **مسئله** :- که دَ اوبو شرعی میل نه دے خو اوبه نه وے - یا وے خو دے ئے په استعمال قادر نه وُ - مجبوری وه - کومه مجبوری چه په شریعت کښں معتبره ده - نو تیمّم دِ وکی - موضع دِ په تیمّم اداکی -

**مسئله** :- که دَ اوبو دَ نشتوالی په وجه تیمّم کول غواړی - نو که په آبادی کښں وُ - بیته دَ اوبو طلب واجب دے - او که په ځنګل کښں وُ - او بالکل ورته نه معلومیږی چه اوبه په دے ځائے کښں شته - او څوک وُ هم نه - چه تپوس ئے وکی - نو تیمّم ورله جائز دے - او که په خپل خیال سره یا دَ بل چا په وینا سره ئے غالب ګمان لرلو چه په دے ځائے کښں چرته اوبه شته - نو طلب ئے واجب دے - خو دومره چه ده ته او دَ ده ملګرو ته پکښں دَ ډیر انتظار تکلیف نه وی - او که په یقین سره ورته معلومه وه - چه دَ یو میل نه دے خو اوبه شته - او څه مانع نه وُ - نو تیمّم ورله جایز نه دے - بلکه او دس به کوی - او که په یقین سره ورته معلومه وه - چه اوبه دَ یو شرعی میل نه اخوا دی - یا یو میل دی نو تیمّم ورله جائز دے -

**فائده** :- شرعی میل څلور زره ګزه دے - او یو شرعی ګز څلیریشت ګوتے دے - او یوه ګوته شپږ وربشے ده - یعنے دَ وربشو شپږ دانے چه پرله پسے کیخودے شی - او دَ یوے تنا دَ بطے چپے سره ولګولے شی دا دَ یوے ګوتے مقدار شه - او یوه وربشه دَ قچر دَ شپږ و ویښتو سره ده - او دَ شرعی میل مقدار په دے طریقه ښه معلومیدے شی - چه یو میل انګریزی او یو فرلانګ او لس ګزه انګریزی دا اټول یو شرعی میل دے - انګریزی میل اته فرلانګ دے - یو فرلانګ یو لس شلے ګزه دے نو انګریزی میل شپیته دَ بره او ولس سوه ګزه دے انګریزی -

---

ے شرح التنویر وشامی ۱۲ ے مینه ودر مختار ورد المختار ۱۲ ے زیلعی ۱۲ ے دَ شرعی میل په تحدید کښں لوراقوال او اختلاف هم شته - لکه په شامی او عرفِ شندی وغیره کتابونو کښں چه ذکر دی - خو دا ځائے دَ تفصیل نه دے ۱۲ منه

**مسئله** :- که څوک د آبادئ نه باهر او وخت د سفر په اراده - یا د یو کلی نه بل کلی له ته - یا وخو لو کوله ته - الغرض وس د ده او د آبادئ په مینځ کښې یو میل منزل وُ - او د د ی نه نژدے اوبه نه وے - نو تیمم کول ورله جائز دی -

**مسئله** :- که په لارے کښې کوهے وُ - خو د ده څخه د اوبو راایستلو څه شے نه وُ - یا وُ خو ناپاک وُ - یا پاکه بوکه او رسئ ورڅخه وه - خو په کوهی باندے منزرے یا بل داسے خطرناک حیوان پروت وُ - یا هلته دشمن وُ - او د ډیرے په وجه ورتلے نشه - او نورے اوبه د یو میل نه دے پله چرته نه وے - نو تیمم کول ورله جائز دی -

**مسئله** :- فرض که چه یو سړے په سفر روان وُ - او په ده د چا ترضه وه او دے عاجز غریب وُ - څه ورڅخه وُ ونه - یا وُ خو د بل امانت وُ - او د کوم سړی چه ئے ترضه ده - هغه په اوبو ناست وُ - نو دے یریږه چه زه که هلته لاړم - او به رم نیسی یا دا پردے امانت به رانه واخلی - او مجبوری وه - نو تیمم ورله جائز دے -

**مسئله** :- که دا معلومه وی چه اوبه د یو میل نه نژدے شته - او په ورتلو کښې څه خطر نه وی - نو تیمم ورله جائز نه دے - او که بنځه یریږه چه په اوبو بدکاره سړے ناست دے - لاس به را واچوی - او نورے اوبه نه وے - نو دے له تیمم کول جائز دی -

**مسئله** :- که اوبه په بیعه خرڅیدے - او د ده څخه پیسے نه وی - نو تیمم ورله جائز دے - او که پیسے ورڅخه د لارے د کرائے او د خرچے نه زیاتے وے - نو په بیعه اخستل ئے واجب دی - تیمم ورله جائز نه دے - لیکن که د اوبو خاوند د اوبو په قیمت کښې ډیر زیاتے کاوُ - بیائے اخستل واجب نه دی - تیمم ورله جائز دے -

**مسئله** :- که اوبه ورڅخه وے - خو تنګے وُ - یا یره ئے وه - چه په لارے کښې اوبه نشته - تنګے به شم - یا دا فکرے به رم تنګے شی - یا د ضرورت سپے یا ښاروے ورسره وُ - د هغه د تندے یره ئے وه - او څه لوښے ورڅخه نه وُ - چه په هغے کښې اودس وکی - او ورته کیدی - یا څه ځائے د روپئ نه زیات ناپاک شوے وُ - هغه ئے په اینځه - یائے پے ده اغکل نو په دے صورتو نو کښې ورله تیمم جائز دے - او که صرف دا ضرورت ئے وُ - چه په دے اوبو به انګوټے پخوم - نو دا ضرورت کافی نه دے - اودس دِ پے وُکی - ډوډۍ دِ بے انګولی اوخوری

**مسئله** :- مسافر په ځنګل کښې تیمم وکه - او د ده څخه په اسباب کښې اوبه وے - خو ده ته یاد نه وے - نو مونځ ئے په تیمم ادا که - ورستو ئے یاد شو چه او هو ځما په اسباب

---

۱ منیه ۱۲ ۲ مجمع الانهر و درمختار ۱۲ ۳ منیه و درمختار ۱۲ ۴ بحرالرائق وشرح التنویر و رد المحتار ۱۲
۵ بحرالرائق وشرح التنویر و رد المحتار ۱۲

کښې خوا وبه شته. نو موږ ئې شویه دے. راکړولو ئې ضرورت نشته. او که مینه دَده شک یا غالب گمان وُ. چه دغه اوبه خلاصې شوې دی. په دے وجه ئې موږ په تیمامه وکه. او بیس دَمانځه نه ورته معلومه شوه. چه دغه نه دی خلاصے شوے. نو رس به پې اودس کوی. موږ به بیا راکرځوی.

**مسئله**[1] :- که اوبه دَ یو میل نه لرے وے. او دَ مانځه وخت لاړ پیروُ. او غالب اُمید ئې وُ. چه په وخت کښې به اوبو ته وُرسېم. نو غوره داده چه تیمّم لا نکوی. بلکه دَ اوبو انتظار دِ وکی. خو دومره ساعت نه چه دَ مانځه وخت پې مکروه شی. او که انتظار دَ اوبو ئې وُنکه. بلکه وُس ئې موږ په تیمّم ادا که هم خیر دے موږ وشه.

**مسئله**[2] :- په سفر کښې ورسره دَ زمزم اوبه وے. او دَ تندے یره ئې هم نه وه. نو تیمّم ورله جائز نه دے. بلکه په دغه اوبو به اودس کوی. او که دے غواړی چه دا اوبه وُنه لګوم. او مانه تیمّم جائز شی. نو حیله ئې داده چه په دغه اوبو کښې دِ خوا بِزه واچوی. چه شربت ترې جوړ شی. یا دے بلکښې د دغه اوبو نه زیات عرق ګلاب واچوی. غرض داده چه یو داسے شے دِ ورسره ګډ کی. چه دَ هغې په وجه بیا دَ زمزم دغه اوبو ته په عام عرف کښې یو ازے اوبه نه ویلے کیږی. یا دے دغه اوبه بل چا ته هبه کی. یعنې وُ دِ بخې. خو په داسے طریقه چه بیا په دے هبه کښې دَده رجوع بالکل صحیح نه وی.

**مسئله**[3] :- که په یو تن غسل دَ جنابت وُ. او په یوه ښځه غسل دَ حیض او یو بے اودسه وُ. او یو مړے پروت وُ. او او به لږ سے وے. لوړے نه وے. نو که دا او به په دی کښې دَ یو تن وی هغه به ئې ولګوی. او که شریکے وے نو مړے دِ پې وُلمبوی. هر یو دِ ورته خپل حق او لښی. او که او به مباح وے. نو جنب دِ پې وُلا مبی. بهر صورت دَ نورو د یو دَ پاره تیمّم دے.

**مسئله** :- که دَ مسافرانو دَ آسانئ دَ پاره په ځنګل کښې چا دَ څکلو دَ پاره اوبه ایښے وے. نو دَ ضرورت په وخت کښې مسافر له سره دَ دغه اوبو دَ موجود والی هم تیمّم جائز دے. او که دَ اودس دَ پاره ئې ایښے وے. یا ئې دواړه خبره دَ پاره ایښے وے نو اودس پې هم جائز دے. او څکل ترې هم جائز دی. تیمّم به نه کوی. او که

[1] بحر رائق ودر مختار ۱۲ [2] شرح المنیه و فتح القدیر ۱۲ [3] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲

معلومہ نہ وہ چہ دا یو اځے دَ ځکلو دَپارہ اِبخی شوی دی - او کہ دَ اودس دَ پارہ ہم دی نو کہ پورے وے - اودس دِ پے وکی - او کہ داسے نہ وے نو نہ -

**مسئلہ** :- پہ ځنګل کښں چا تیمم وکہ - او مونځ ئے اداکہ - بیا ورتہ معلومہ شوہ چہ او بہ نژدے دی - او مینہ ورتہ معلومہ نہ وہ - نو مونځ ئے شوے دے - بیائے راګرځولو تہ ضرورت نشتہ -

**مسئلہ** :- کہ دَ خپل اصلی ضرورت نہ ورځنہ زیاتے او بہ وے خو پورے لږ وے - او دَدۂ غسل تہ ضرورت نہ وُ - بلکہ صرف اودس تہ ئے ضرورت وُ - نو کہ دغہ او بہ دومرہ وی - چہ یو ځل پے تول مخ اینځلے کیدے شی - او یو ځل پے دواړہ لاسونہ سرہ دَ څنګلو - او مسح دِ سر - او یو یو ځل پے دَ پښوکو سرہ دواړہ پښے اینځلے کیدے شی - نو تیمم ورلہ جائز نہ دے - بلکے یو یو ځل دِ پے دا اندامونہ وانځی او دَ سر مسح دِ ہم وکی - چہ دَ اودس فرائض ئے اداکړہ - اودس ئے وشہ - خولے اوپوزے تہ دَ اوبو اچولو او دَ نورڅہ ضرورت نشتہ - او کہ او بہ دومرہ ہم نہ وے نو تیمم ورلہ جائز دے -

**مسئلہ** :- کہ پہ چا غسل لازم شوے وو - او او بہ ئے دَ خپل اصلی حاجت نہ زیاتے صرف دومرہ او مونده - چہ دَ غسل فرض پے پورہ کیدے شہ - او سنت پے نشہ پورہ کیدے - نو خیر دے پہ غسل کښں چہ کوئے خبرے فرض دی - ھغہ دِ پے وُکی - کافی دہ - غسل ئے وُشہ - او تیمم ورلہ جائز نہ دے - او کہ او بہ صرف دومرہ وے - چہ داسے غسل پے ھم نشہ کیدے - نو تیمم دِ وکی - او چہ دَ غسل تیمم وکی - ھغہ دَ اودس دَ پارہ ھم کافی دے -

**مسئلہ** :- کہ چا دَ اوبو نہ موندلو پہ وجہ دَ جنابت دَ پارہ تیمم وکہ - نو دَ اودس تیمم ئے ھم ورسرہ وشہ - نو کہ دَدے نہ ورستوئے دَ خپل اصلی ضرورت نہ زیاتے دومرہ او بہ او موندے - چہ اودس فدرے پے کیدے شہ - نو اودس کول پے واجب نہ دی - ھاں کہ دَ دغہ تیمم نہ پس څہ خبرہ اودس ماتونکے ورتہ پیښہ شوے وہ - لکہ داړہ بول ئے کړی وُ - مثلاً نو دغہ تیمم ئے پہ حق دَ اودس کښں مات شوے دے - دس چہ مونځ کوی - مینہ بہ پہ دغہ اوبو اودس وُکی - ھلہ بہ مونځ کوی - دس ورلہ پہ داسے حالت کښں چہ دَ اودس او بہ مومونده دکی

---

لہ منیہ ۱۲ ؎ درمختار و شامی ۱۲ ؎ درمختار و شامی ۱۲ ؎ درمختار و شامی ۱۲

دَ اودس دَ پاره تیمّم جائز نه دے۔

**مسئله** :- که دَ لمبلو ضرورت وُ۔ دَ دے وجے نه یٔ غسل وکه۔ لیکن څه ځائے یٔ په بدن کښې وچ پاتے شه۔ او او به یٔ ختم شوے۔ او نورے یٔ موندے نشوے نو غسل نه دے شوے۔ دَ غسل تیمّم دے وکی۔ دَ دے نه پس که یٔ او به او موندے او ده ته لاځه خبره اودس ماتونکے نه وه پیښه شوے۔ نو هغه وچ ځائے دے وا ینځی غسل یٔ پوره شه۔ سر دوباره غسل ته ضرورت نشته۔ او که او به یٔ په دا سے وخت کښې او موندے۔ چه ده ته اودس ماتونکے خبره هم پیښه شوے وه۔ او او به صرف دومره وے۔ چه یواځے دغه وچ ځائے پے اینځلے کیدے شه۔ او اودس پے نشه کیدے۔ نو هغه وچ ځائے دے پے وا ینځی۔ او دَ اودس دَ پاره دے تیمّم وکی۔ او که او به صرف دومره وے چه دَ اودس دَ پاره کافی کیدے شوے۔ او دغه وچ ځائے دَ پاره نه شوے کافی کیدے۔ نو اودس دے پے وکی۔ او دَ هغه ځائے دَ پاره ځنګے تیمّم کافی دے۔ او که او به یٔ دومره او موندے۔ چه یوازے دَ اودس دَ پاره هم کافی کیدے شوے۔ او یواځے دَ دغه ځائے اینځلو دَ پاره هم پوره کیدے شوے۔ خو دومره نه وے چه دواړه پے وشی۔ نو هغه وچ ځائے دے پے وا ینځی۔ او دَ اودس دَ پاره دے تیمّم وکی۔[1]

**مسئله** :- که ذیروکے یا څه ځائے یٔ ناپاک وُ۔ او اودس ته یٔ هم ضرورت وُ۔ او او به دَ دواړو دَ پاره نه کیدے۔ نو هغه پلیتی دے وُ اینځی۔ او دَ اودس دَ پاره دے تیمّم وکی۔

**مسئله** :- که دَ ناجوړتیا په وجه ورله او به ښے نه وے۔ او دا سے وُ۔ چه که اودس یا غسل یٔ وکه۔ یا به هلاک شی ستے۔ یا به یٔ ناجوړتیا او ږده شی۔ نو تیمّم ورله جائز دے۔ او که او به ورله یخے نه وے ښے۔ تودے دے کی۔ او که تودے ورله هم نه وے ښے۔ یا تودے یٔ بالکل موندے نه شوے نو تیمّم ورله جائز دے۔[2]

**مسئله** :- فرض که چه یو سړے ناجوړه دے۔ او او به ورله نه دی ښے۔ بل ته یٔ او ویل چه ماله تیمّم وکه۔ پس هغه ورله تیمّم وکه۔ یعنی دَ مریض په مخ او په لاسونو یٔ با قاعده لاسونه راخکودل۔ نو دَ مریض تیمّم وشه۔ چه مریض نیت دَ تیمّم کړے وی۔[3]

---

[1] منیه و شامی ۱۱ [2] فتاوی هندیه ۱۲ [3] در و رد و بحر ۱۲

مسئله[1]:- فرض که چه سخته یخنی ده - او غسل په د جنابت وي - او توده اوبه ئې موندے نه شوے - او د غریب ځنه ئې برستن وغیره هم نه وه - چه بیا په تود شي - او یره ئې ده چه که و لمبل - هلاک به شم - یا به ناجوړه شم - نو تیمم ورله جائز دے - او که په ښار کښې وي - او پیسے ور ځنه وے - خو وس موجود نه وے - نو نسیه دے وکی - او اوبه دے لامبي - مطلب دا دے چه د کوټ پورے د لمبلو قدرت لری - او سخت ضرورت نه وي نو لامبي به -

مسئله[2]:- په اودس کښې چه د کوم اندامونو وینځل یا مسحه کول فرض دی - او هغه څلور دی - که هغه د نیمے نه زیات زخمي وي - یعنې درے یکښې زخمي وو - نو تیمم ورله جائز دے - او که دا سے نه وه نو نه - نوکه مخ او دواړه لاسونه او سر ئې زخمي وي - مثلاً - او خپے ئې جوړے وے - نو صرف تیمم به کوی - او که صرف دواړه خپے ئې خوږ وے - نو اودس به کوی - او په خوږ ځائ به مسح کوی - هله که مسحه ورله بنه وه - او که بنه نه وه - نو د پټئ د پاسه به مسح کوی - او ځینې عالمان وائی :- چه د دغه څلورو واړو اندامونو نه هر یو اندام که د نیمے نه زیات زخمي وي - نو تیمم به کوی - کنی نو نه -

مسئله[3]:- که د غسل ضرورت ئې وي - او ټنکۍ پے راختلی وے - یا په بدن ئې د نیمے نه زیات زخمونه وو - نو تیمم ورله جائز دے - او د کوم جوړ ځائ په وینځلو سره چه خوږ ځائ لمدیږی - هغه جوړ ځائ به هم په خوږ حسابیږی - مثلاً په شا ئې زخم دے - که بره ئې په جوړ ځائ اوبه اچوے - زخم هم لمدیږی - نو د غه جوړ ځائ به هم په خوږ حساب شي -

مسئله[4]:- که د چا دواړه لاسونه د څنګلونه بره پریکړے شوي وي - او دواړه خپے ئې د ګیټو نه بره پریکړے شوے وے - او د غریب مخ هم زخمي وي - نو ظاهر منه هیڅ دا دے - چه په ده نه اودس شته - نه تیمم - ځکه چه مونځ وکی - نو مونځ ئې ونه بیا راګرځول پے هم نشته - او که په دے صورت کښې مخ ئې زخمي نه وي - بلکه جوړ وي او وینځلے ئې شي نه - نو مخ دے په نیت د تیمم په دیوال راکاکی - تیمم ئې وشه - مونځ دے پے وکی -

مسئله[5]:- که څوک په قید خانه کښې بند وي - او اوبه ورته ملاویږی نه -

له در و درد و بحر ۱۲ له بحرالرائق وخانیه ۱۲ له درود ۱۲ له ابوسعود و بحرالرائق ۱۲

اوځائے پلیت وُ۔ پاک خاورے وغیره هم نه مونده۔ یعنے دَ اودس او تیمم دواړو نه عاجزدُ۔ داسے سړی ته فاقد الطهورین ویلے شی۔ په فاقد الطهورین باندے واجب دی۔ چه دَ مانځه په وخت کښں به دَ مانځه ببینه کوی۔ یعنے نیت دَ مانځه دے نه سړی خو هسے به دَ مونځ کونکی په شان وُدریږی۔ بعضے وائی چه رکوع او سجده وغیره به کوی۔ خو څه به لولی نه۔ دے داهله که څه وچ ځائے مونده۔ کنی نو په ولاړه دے په اشارو سره نقل وکی۔ او په بعضے کتابونو کښے راوړی دی۔ چه په دے صورت کښں صحیح خبره داده چه ځائے وچ دی او که لوند۔ په هرحال کښں به صرف په اشاره نقل دَ مونځ کوی۔ اودا صرف دَ دے دَپاره چه دَوخت احترام او دَخدائے پاک دَحکم منل ظاهرشی۔ اودا مطلب نه دے چه مونځ ئے وشه۔ بلکه دا مونځ به بیا څه وخت قضارا اوړی۔ که آزاد شه۔ دا دَ صاحبینو رح قول دے۔ او په دے فتویٰ ده۔ نو اوګوره چه شریعت دَ مانځه څومره لوئے احترام ساتلے دے۔ او مونږ ته غافله یُو۔ خدائے پاک دے خُمونږ زړونه مانځه ته او نیک عمل سته سپین کی۔

**مسئله**:۔ که څوک دَ اوبو دَ استعمالولو نه عاجز وو۔ په سبب دَ یو بے داسے شرعی مجبورئے چه هغه صرف دَخدائے پاک دَ طرفه ده۔ دَ مخلوق پکښں دخل نشو۔ لکه ناجوړه دَ۔ یا سخته یخنی ده۔ او په لمبلو کښں ئے دَ هلاک کیدلو یا دَ مرض ډیره وه۔ یا اوبه ئے نه مونده مثلاً۔ او په دے وجه ئے مونځ په تیمم اداکه۔ نو دا مونځ وشه۔ بیا ئے راګرځولو ته ضرورت نشته۔ بلکه که په دغه تیمم ئے مونځ وکه۔ او بیا دَ وخت دَ مانځه لاپاتے وُ۔ او دے په اوبو قادر شه۔ نو هم دَ دغه مونځ راګرځولو نه ضرورت نشته او که مجبوری داسے مجبوری ده۔ چه دَ بنده پکښں دخل دُ۔ لکه یو سړی ته چا اوویل۔ چه ناکه اودس اوکه۔ او به دے وژنم۔ یا څه لاس خپه به دے پریکړم۔ او دَ ده غالب ګمان دُ۔ چه ماکه اودس وکه۔ دا چل به راسره وکی۔ نو ده له جائز دی چه مونځ په تیمم وکی۔ لیکن چه دا مجبوری لرے شی۔ بیا به دَ دغه مونځ راګرځول هم ضروری دی۔

**مسئله**:۔ که مجبوری ده۔ نو لکه چه مخکښں بیان شوی دی۔ دَ اودس دَپاره تیمم کولے شی۔ او که غسل دَ جنابت په اوخته وی۔ یا ښځه دَ حیض نه یا دَ نفاس نه

لـه هندیه وشرح التنویر ۱۲ ـه ملتقیٰ وهدایه ۱۲

پاکه شوه او مجبوري وه - نو د غسل د پاره هم تیمم کولے شي - د اودس او د غسل د تیمم طریقه یوه ده -

**مسئله**[۱] :- په کومو څیزونو سره چه اودس ماتیږي - په هغې سره د اودس تیمم هم ماتیږي - او که کم از کم د اودس کافي کیدلو په مقدار رسے اوبه اُمونده - او تیمم ئې د اوبو نه موندلو په وجه کړے وُ - نو په دے سره هم ماتیږي - یعنے که کم از کم دومره اوبه ئې اوموندے - چه د اودس فرض پے پوره کیدے شوه - نو تیمم ئې مات شه - او که اوبه د دے نه هم لږ ے وے - په دے سره تیمم نه ماتیږي -

**مسئله**[۲] :- که چا د اوبو نه موندلو په وجه تیمم د جنابت وکه - مثلاً - نو دا تیمم لکه چه مینه بیان شوے دے - په حق د اودس کښې هم کافي دے - وس به دا تیمم په حق د غسل کښې هله ماتیږي - چه دے د خپله اصلي حاجت نه زیاتي اوبه د غسل کافي کیدلو په مقدار اوموني - یعنے کم از کم دومره او به چه فرض د غسل پے پوره کیدے شي - یا ورته دا سے خبره پیښه شي - چه په هغې سره غسل واجب کیږي - او په حق د اودس کښې به هله ماتیږي چه اودس ماتونکې خبره ورته پیښه شي - یا د خپل اصلي ضرورت نه سوا دومره اوبه اوموني - چه کم از کم د غسل د پاره کافي کیدے شي - او که اوبه ئې دومره قدرے اوموندے چه صرف اودس پے کیدے شه - نو په دے سره د غه تیمم په حق د اودس کښې هم نه ماتیږي - او دا بیان مخکښې هم تیر شوے دے -

**مسئله**[۳] :- که اوبه د یو میل نه لرے وے - په دے وجه ئې تیمم وکه - بیا چه ته ته لو او بو ته د یو میل نه فاصله کمه پاتې شوه - نو تیمم ئې مات شه -

**مسئله**[۴] :- که د اوبو نه موندلو په وجه ئې تیمم کړے وه - بیا چه روان وُ - په اوبو تیرونه خو تیریدت - لیکن معلومه ورته نه شوه چه دا ځائې اوبه دي - یا سوړ روان وُ - او په دغه وخت خوب ز ټکاوُ - یا بیده ویښ وُ - او دا ورته هم معلومه شوه چه اوبه دي - خو په اوبو یو زبردست مار پروت وُ - یا بل څه معقوله وجه وه - د دا کوزیدلو قدرت ئې وُ نه موند - نو په دے صورتونو کښې هم تیمم نه دے مات -

**مسئله**[۵] :- د کومې مجبورئې په وجه چه تیمم شوے دے - د هغه مجبورئې په لرے کیدو سره هم تیمم ماتیږي - مثلاً د ناجوړتیا په وجه چا تیمم کړے وُ - نو چه

---

[۱] در مختار ورد المحتار ۱۲ [۲] شرح التنویر دشامي ۱۲ [۳] در مختار ۱۲ [۴] در مختار ۱۲ [۵] کنز الدقائق ۱۲

جوړ شه - او او به ورله نقصان نه وي - تیمم ئې مات شه - او وس ورله تیمم جائز نه دے - بلکه د اوبو استعمال به کوي -

مسئله[۱] :- په تیمم کښې دا ضروري نه ده - چه وائي زه تیمم د پاره د اودس کوم - یا د غسل د پاره - بلکه مینه دې په زړه کښې اراده وکي - چه زه تیمم کوم د پاره د پاک کیدلو - او د پاره د مانځه د رواوالي - دا نیت شه - او که په عربۍ ژبه ئې ویل غواړي - نو مثلاً دا سے دے او وائي نَوَیْتُ اَنْ اَتَیَمَّمَ لِرَفْعِ الْحَدَثِ وَلِاِسْتِبَاحَةِ الصَّلٰوةِ نو که غسل ته ئې ضرورت وُ - او یو تیمم ئې وکه - نو د اودس او د غسل دواړو د پاره دا یو تیمم کافي شه - بیا ئے ضرورت نشته - چه د اودس د پاره ځان له تیمم کوي - او د غسل[عه] د پاره ځان له -

مسئله[۲] :- اسلام[۱] - کوم[۲] شے چه د تیمم سره منافي وي - لکه حیض و نفاس د ختم بند یدل - د اوبو نه معذوري[۳]تیا. طلب[۴] د اوبو کچرے گمان وُ - چه نژدے دي - او تیمم ئے کاوُ - د اوبو د نشتوالي په وجه. نیت[۵] د تیمم - خاوره[۶] وغیره - د ځینې[۷] پاکوالے د لاس[۸] په اکثره حصه سره مسحه - دا ټول واړه د تیمم شرائط دي - او په تیمم کښې دوه رکنه دي - دوه[۱] ضربه - او د مخ او د دواړو لاسونو پوره[۲] مسحه - او دا دا تلو نکي اته یکښې سنت دي - بسم[۱] الله ویل - دواړه[۲] ورغوي سره د گوتو په لونه وهل - گوتے[۳] خورے ایښودل - مخ ته[۴] راخکل. شا ته[۵] بوول - پس[۶] د او چتولو نه ټکوهل - ترتیب[۷] یعنے مینه د مخ بیا د لاسونو مسح کول - ولاء[۸] یعنے د وریستي اندام مسح د وړمبي نه دومره نه مؤخر کول - چه استعمال که ئے د اوبو کولے نو وړمبے به وچ شوے وُ - او بعضو یکښې نور سنن هم ذکر کړیدي - لکه تیمم[۹] په لونه یا په زمکه کول - د ږیرے[۱۰] خلال - د ښي[۱۱] لاس مسحه د گس لاس د مسحے نه مینه کول -

مسئله[۳] :- د تیمم طریقه دا ده چه مینه دې نیت وکي - بسم الله دې او وائي - بیا دے دواړه منگلې پاکے زمکے له یا بل داسے شي له را پریدي - او گوتے دې وازے ساتي بیا دې مخ ته او شا ته کش کي - بیا دے ئے او چت کي - ټک دې وهي - نو په ټول مخ دے را کاږي - بیا دے دواړه لاسونه هم هغه شان زمکے له را پریږدي[عه] - چه ټک ئې وهي - نو د گس لاس د ځینې گوتے نه سوا چه کوچنۍ څلور گوتے دي - د ځینې په باطن طرف سره دې د ښي

---

له عالمگیري ۱۲ ؎ له من الدرالمختار ورد المحتار ۱۲ ؎ له شرح منیة الکبیري ۱۲ عه د جنابت په تیمم کښې دے دا الفاظ وائي :- نویت ان اتیمم لرفع الجنابة ولاستباحة الصلوٰة ۱۲ منه
عه یعنے پس د نویت ان اتیمم الخ ویلو نه ۱۲ منه

لاس دَ گوتو دَ سرونو نه شروع وکی - او دَ هغې په ظاهر طرف دِ را کاږی تر څنګلو پورې بیا دِ دَ هغه ځائے نه دَ کس لاس ورغوے دَ ښی لاس په باطن طرف را کاږی - چه دَ ښی لاس دَ ورغوی غاړے ته ورسی - نو دَ کس لاس دَ غټے گوتے دِ پیچ به سرونه رسیدلے وی دَ هغه ځائے نه دے دا گوته دغه شان دَ ښی لاس دَ غټے گوتے په ظاهر تیره کی - بیا دے په دے طریقه دَ کس لاس مسحه وکی - او په آخر کښی دے دَ دواړو لاسونو دَ گوتو خلال هم وکی - بس تیمم وشه -

مسئله[۱] :- کومه طریقه دَ تیمم چه بیان شوه - دا غوره ده - لیکن چه نیت دَ تیمم وی او دوه ځله لاسونه راپریښودل او دَ ټول مخ او دَ دواړو لاسونو مسحه وشی - نو تیمم وشه په هره طریقه چه وی -

مسئله[۲] :- په کوم ځیز چه تیمم کوی - هغې له لاسونه راپریښودل ضروری نه دی - که لاسونه ئے پے کیښودل هم کافی ده -

مسئله[۳] :- که دَ سپینکو ظاهری حصه یا دَ ننوری ظاهری حصه یا په مخ او په لاسونو کښی بل داسے ځائے پاتے شه چه لاس پے تیر نکړے شه - نو فتوی په دے ده چه تیمم به ونشی - دا ضروری نه ده چه ټول مخ او لاسونو ته دوړه ورسی - خو دا ضروری ده چه په دے حد کښی ظاهری څرمن وی او که وینسته - دَ یا سره پے مسحه وشی - او که گوته ئے په لاس وه - یا بنګړی وغیره - نو ودے کاګی - ځکه چه په خوزولو دا خوزولو کښی به ئے هسے تکلیف وی - او دَ منګلو دَ ظاهری حصے مسحے ته بیا ضرورت نشته - پلکے زمکے له چه ئے راپریښی دی داپوره ده -

فائده :- سړے چه خپل ورغوے ځان ته مخامخ دَ آئینې په شان ونسی - په دے وخت کښی چه ده ته دَ دغه لاس کوم طرف په نظر نه راځی - هغه طرف دَ دغه لاس ظاهر دے - او دَ دے مقابل ئے باطن -

مسئله[۴] :- دَ څنګلو مسحه هم ضروری ده - او که لاس په څنګلے کښی پریکړے شوے وُ - نو کومه حصه دَ څنګلے چه پاتے ده - دَ هغې مسحه ضروری ده -

مسئله[۵] :- که په زمکه متیازے یا پلیته څه پلیتی لګیدلے وه - او چه شوے وه - چه ورسے ئے څه اثر نه وُ پاتے - نو په دغه زمکه مونځ جائز دے - خو تیمم پے نه دے جائز - او که معلومه نه وی چه دا ځائے داسے پلیت وُ - نو خیر دے شک دے نه کوی - تیمم به وشی -

---

[۱] خلاصة الفتاوی وشامی ۱۲ [۲] شامی ۱۲ [۳] شرح النقایه برد المحتار وشرح الوقایه وغایته ۱۲ [۴] درمختار ۱۲ [۵] منیة بحر ۱۲

**مسئله[1]** :- دَ زمکے نه سوا بل داسے شے چه دَ زمکے دَ جنسه وی او پاک وی په هغے هم دَ امام صاحبؒ په نزد تیمّم جائز دے ـ لکه خاوره ـ شګه ـ چونه ـ رانجه وغیره او کوم شے چه دَ زمکے دَ جنسه نوی ـ لکه وَسپینه ـ سپین زر ـ سره زر ـ غنم ـ لړوګے ـ لرګے دانے وغیره ـ په دے شیزونو تیمّم جائز نه دے ـ لیکن که دُوړے او خاورے پے وے ـ بیا جائز دے ـ او دا شے[2] دَ زمکے دَ جنسه دے او که نه دے ـ دا په دے طریقه معلومیدے شی ـ چه کوم شے په اور سوزی او ایره کیږی ـ لکه لرګے ـ واښه وغیره ـ یا نرم کیږی یا ویلی کیږی لکه وُسپینه او سره او سپین وغیره ـ هغه دَ زمکے دَ جنسه نه دے ـ او په کوم شی کښی چه دا خبرے نه وی ـ د هغه دَ زمکے دَ جنسه دے ـ

**مسئله[3]** :- دَ مټے په ایره تیمّم جائز دے ـ او په بله ایره جائز نه دے ـ لیکن که خاورے ورسره ګډے وے او دَ خاورو مقدار دَ ایرے نه زیات وُ ـ بیا پے جائز دے ـ

**مسئله[4]** :- په ګټه تیمّم جائز دے ـ اګر که څه دُوړه پے نه وی ـ بلکه ګټه که اینځلے شوے وه ـ هم پے تیمّم جائز دے ـ البته دَ غره په مالګه کښی اختلاف دے ـ چه تیمّم پے جائز دے او که نه ـ او کومه مالګه چه دَ اوبو نه دَ غیږی ـ لکه نمک سانبهری په هغے جائز نه دے ـ

**مسئله[5]** :- په بالخت او په زړوکی او دَ تانبے په لوښی تیمّم جائز نه دے ـ هاں که دُوړه پے کافی مقدار وه ـ نو کولے شی پے ـ او د کودرو په لوښی تیمّم جائز دے تش وی او که ډک ـ لیکن که غوړ وُ ـ نو جائز پے نه دے ـ خو که دُوړه پے وه ـ بیا جائز دے ـ

**مسئله[6]** :- که دَ تیمّم دَ پاره ئے سوا دَ لمدے خټے نه بل څه شے ونه موند ـ او هغه پاکه وه ـ نو په څه زړوکی دِ پورے کی ـ چه وچه شی ـ تیمّم دے پے وکی ـ او که دَ مانځه وخت تنګ وُ ـ دوچیدلو په انتظار کښی ئے مونځ قضا کیده ـ نو دَ امام صاحبؒ په نزد دا خبره ده ـ چه مونځ دِ نه قضا کوی ـ په خټه دے تیمّم وکی ـ په مناسبه طریقه ـ

**مسئله[7]** :- که چا بل ته تیمّم زده کاوُ ـ چه په دے طریقه کوه ـ نو دَ هغه دَ زده کړے دَ پاره ئے تیمّم وکه ـ او په زړه کښی ئے دَ خپل تیمّم نیت نه وُ ـ نو دا تیمّم نه دے شوے ـ ځکه چه دَ تیمّم دَ پاره نیت ضروری دے ـ

---

[1] منیه و بحر ۱۲ [2] هندیه درد المختار ۱۲ [3] درودر ۱۲ [4] منیة و خانیه ۱۲ [5] ددودد ۱۲ [6] شامی ـ [7] هندیه ۱۲

**مسئله**:- که په یوه لوښه یا بل داسې شي کښې تیمم کوي - دا هم جائز دی -

**مسئله**[1]:- که اوبه موجودې وي - او دې ئې په استعمالولو قادر هم وُ او سره د دې نه قرآن شریف له د لاس وروړلو دپاره یا جُمات ته د ننوتلو دپاره تیمم وکه - د دې تیمم هیڅ اعتبار نشته -

**مسئله**[2]:- که اوبه نژدې وې - او دې ئې د استعمالولو نه عاجز هم نه وُ خو د ماښام وخت دومره لږ پاتې شه - چه د ده ویره وه - که زهٔ اودس کوم وخت به وځي - او په دې وجه تیمم کول غواړي - دا تیمم جائز نه دې - بلکه اودس به کوي او که د ماښام وخت تیر شه - مونځ به قضا راوړي -

**مسئله**[3]:- که درنډ جمع وه - او خلق په ماښام ولاړ وُ - او د سړي یره وه چه زه که اودس کوم - دا مونځ به رانه فوت شي - او په دې وجه تیمم کول غواړي نو دا تیمم جائز نه دې - اودس به کوي - که د جمع مونځ ئې ونه مونده - نو د ماسپخین مونځ به کوي -

**مسئله**[4]:- که د اختر په مانځهٔ کښې د سړي اودس مات شه - نو تیمم ورله جائز دې - بناء دې وکي - او دا د امام صاحبؒ قول دې - او د بناء بیان به د مانځهٔ په مسئلو کښې راشي -

**مسئله**[5]:- که سړي اودس نه وُ کړې - او وُرز د اختر وه - او خلق په مانځهٔ ولاړ وُ - یا وُدریدله - او د ده یره وه - چه زه که اودس کوم - د اختر مونځ به رانه فوت شي - نو ده له تیمم جائز دې - او که په دې تیمم ئې دغه مونځ شروع کړ - او خدائے دِ نکړي - په مانځهٔ کښې بې اودسه شه نو بیا دې زر تیمم وکي - او بناء دِ وکي د پاره د دې چه مونځ ئې فوت نه شي -

**مسئله**[6]:- که د چا یره وه چه زه که اودس کوم - امام به ټول تکبیرونه د جنازې ختم کړي وي - د جنازې دا مونځ به رانه بالکل لاړ شي - نو تیمم ورله جائز دې - اګرکه اوبه موجودې وې - نو که په تیمم ئې دا مونځ وُکه - بیا بله جنازه راغله او د دوارو جنازو په مینځ کښې دومره ساعت تیر شو چه ده پکښې اودس کولے شه

---

[1] هندیه در مختار ۱۲ [2] منیه وشرح التنویر ۱۲ [3] هدایه ۱۲ [4] بحر رائق ۱۲ [5] هدایه ۱۲
[6] شرح التنویر ۱۲ [7] یعنې دغه تیمم ئې مات شه ۱۲ [8] درمختار ۱۲

خو وئ نکه ـ وس ئ بیا دابیره شوه ـ چه په اودس کولو کښې به رانه داموځ هم تلل لاړ شي ـ نو وُس به بل تیمّم کوي ـ همغه مخکنی تیمّم کافي نه دے ـ او که دَ اودس کولو وقت ئ په مینځ کښې نه وُتیر شوے ـ نو مخکنی تیمّم کافي دے ـ

**مسئله**[۱] :- که اوبه نه وے ـ نو د قرآن شریف لوستلو دَ پاره یا دلاس وروړلو دَ پاره ئ تیمّم وکه ـ دا تیمّم جائز دے ـ خو په دے تیمّم مونځ نشی کولے ـ

**مسئله**[۲] :- که تیمّم ئ دَ مانځه دَ پاره وکه ـ نو دَ کومے پورے چه ئ دا تیمّم نه وی مات شوے ـ هر څو مره مونځونه پے کولے شي ـ فرض وی او که سنت وی ـ او که نفل ـ او دَ بل وخت مونځ پے هم کولے شي ـ او په دغه تیمّم قرآن شریف لوستل او لاس ورله وروړل هم جائز دی ـ

| په موزو مسحه کول | **مسئله**[۳] :- که دَ څرمنے موزے داسے وے چه پوره څپے پکښې دَ پړکو پورے پټیدے ـ او درے ګټو رمیله مزل پکښې کیدے شه ـ نو چه په کامل اودس په خپو کړے شي ـ بیا پے په موده دَ مسحے کښې مسحه کولے شي ـ

**مسئله**[۴] :- که دَ چا اودس نه ؤ ـ او تیمّم ئ وکه ـ بیا ئ موزے په خپو کړے ـ بیا په اوبو قادر شه ـ نو وس چه دے اودس کوی ـ څپے به هم اینځی ـ په موزو به مسح نه کوی او دا رنګ که دَ چا اودس نه ؤ ـ او موزے ئ په خپو کړے ـ نو وس چه اودس کوی ـ څپے اینځل پے هم واجب دی ـ مسح به په موزو نه کوی ـ هاں که څوک اودس ته کیناست مینه ئ څپے واینځلے ـ موزے ئ په څپو کړے ـ او وروسته ئ باقی اودس پوره که ـ او دَ دے اودس پوره کیدو پورے ورته څه خبره داسے پیښه نه شوه ـ چه په هغې سره اودس ماتیږی ـ نو کوم وخت چه بیا دا اودس مات شی ـ او بیا اودس کوی ـ په موزو مسح کولے شي ـ نو معلومه شوه چه مسح په موزو هله صحیح کیږی ـ چه موزے په کامل طهارت یعنے په کامله پاکئ سره په خپو کړے شوی وی ـ خو دا ضروری نه ده ـ چه دَ موزو په خپو کولو په وخت کښې ئ طهارت کامل وی ـ بلکه دا ضروری ده ـ چه دَ موزو په خپو کولو نه وروستوئ کوم اودس چه ماتیږی ـ همغه کامل وی ـ

**مسئله**[۵] :- ښځه وی او که سړے ـ مسحه دَ موزو دَ ټولو دَ پاره جائزه ده ـ دَ مسافر دَ پاره موده دَ مسحے درے شپے او درے ورځے ده ـ او دَ مقیم دَ پاره یوه شپه او یوه ورځ ـ او مطلب دا دے چه یو ځل ئ اودس وکه ـ څپے ئ واینځلے ـ او موزے

---

[۱] درمختار ۱۲ [۲] هدایه ۱۲ [۳] مجمع الانهر ۱۲ [۴] منیه وکبیری ۱۲ [۵] درمختار ۱۲

ئے پہ خپو کړے۔ مثلاً نو دَ دے اودس ماتید لو نه پس بیا کوم کوم وخت چه په دے موده کښې دننه اودس کوی۔ په موزو د دله مسح جایزه ده۔ دَ خپو ا یځل پے واجب نه دی۔

**مسئله**:- دا درے شپے او درزے یا په شپه او ورځ به دَ هغه وخت نه حسابیږی چه دَ موزو په خپو کولو نه پس ئے کوم وخت اول ځل اودس مات شی۔ مثلاً ماسپخین ئے اودس وکړ۔ موزے ئے په خپو کړے۔ بیا دا اودس ئے نن د نور پریوتو په وخت کښې مات شه۔ نو صبا نور پریوتو پورے ورله مسح جایزه ده۔ که مقیم وی۔ او که مسافر وُ۔ نو دَ صبا نه بله دُ ورځه لا بله ورځ دَ نور پریوتو پورے۔

**مسئله**:- که اودس ئے وکړ۔ او موزے ئے په خپو کړے۔ او اودس ئے لا نه وُ مات۔ اوده شه۔ نو دَ مسح موده به دس دَ خوب دَ وخت نه شروع کیږی نه دَ ویخیدو نه۔

**مسئله**:- که موزے ئے په خپو دے۔ او غسل پے واجب شو مثلاً۔ نو مسح ورله جایزه نه ده۔ یعنے غسل چه کوی نو په هم اینځی۔ ځکه چه غسل او مسح دواړه نه جمع کیږی۔

**مسئله**:- په موزو چه مسح کوی۔ نو سنت طریقه ئے دا ده۔ چه دَ لاسونو ګوتے لمدے کړی۔ بیا ئے دَ خپو دَ ګوتو دَ پاسه په موزو کیدی۔ بیا ئے دَ پڼو نه بره دَ پنډی پورے را کاږی۔ په ښئے خپه دَ ښی لاس۔ او په ګسه خپه دَ ګس لاس۔ او که دَ ګوتو سره ئے دَ رغوے هم په موزه کیخود۔ او ټول ئے دَ غړشان په موزو راښکودل نو غوره ده۔

**مسئله**:- دَ موزو مسح یو یو ځل پکار ده۔ دیره وارے پکښې سنت نه دے لکه دَ خپو په اینځلو کښې چه سنت دے۔

**مسئله**:- که ګوتے ئے په موزه پر پسینلے نه وے بلکه وردولے ئے دے او دَ هغې سرونه ئے په موزه را ښکودل۔ نو۔ دا مسح جایزه نه ده۔ هاں که دَ ګوتو نه ئے دَ مسح په وخت کښې برابر او به څڅیدے۔ نو جایزه ده۔

**مسئله**:- په موزو چه مسح کوی۔ نو مستحب دا ده۔ چه دَ ګوتو یاد کړتو او دَ رغوی خیته په موزه را کاږی۔ او که دَ شا په طرف سره ئے مسح وکړه۔ نو هم

---

له در المنتقی ۱۲ ـ که شامی ۱۲ ـ سه منیه ۱۲ ـ که بحر الرائق ۱۲ ـ شه ذخیره ۱۲ ـ له منیه ۱۲

جایز ده۔

مسئله[1]:- په موزو چه مسح کوی۔ نو د تلو په طرف دې نه کوی۔ بلکه په بره طرف دې کوی۔ او څینې وائی چه جمع مستحب ده۔ او که چا صرف د موزې په بلا نسې حصه یا د پونډو په برابر یا د موزو په غاړو ېڅکو مسح وکړه۔ نو دا جائز نه ده۔

مسئله[2]:- که چا د موزو مسح په اوګدو ونکړه۔ بلکه په پلنوئې وکړه۔ نو دا هم جایزه ده۔ لیکن د مستحب نه خلاف ده۔ او دا رنګ که مسح ئې په اوګدو وکړه خو سری کونه۔ یعنې د پنډو د برابرنه ئې شروع وکړه۔ او د څوکو د ګوتو برابرته ئې ورسوله نو دا هم جایز ده۔ خو د مستحب نه خلاف ده۔

مسئله[3]:- په هره یوه موزه یا نسې د خپې د پاسه کم از کم د لاس د دریو ګوتو د ځائ هومره مسح فرض ده۔ د دې نه په کم مقدار باندې مسح نه کافی کیږی۔

مسئله[4]:- که په موزو ئې د مسح په ځائ درې لمدې ګوتې پریښودلې کیخودې او راتې ئې نه ښکودلې۔ نو هم مسح وشوه۔

مسئله[5]:- که په موزو ئې مسح ونکړه۔ بلکه باران لمدې کړې۔ یا د باران په وجه دابنه یا فصل وغیره لوند شوی و۔ او دې په هغې کښې روان و۔ موزې ئې پې باقاعده لمدې شوې۔ نو مسح ئې وشوه۔ او که فصل وغیره په پرخه لوند و۔ او د ده موزې پې لمدې شوې۔ نو صحیح خبره دا ده۔ چه په دې صورت کښې ئې هم مسح وشوه۔

مسئله:- په کوم شی سره چه اودس ماتیږی۔ په هغې مسح هم ماتیږی۔ نو چه اودس کوی۔ په موزه کښې ننه به په موزو مسح هم کوی۔ او د موزې په وېستلو سره هم مسح ماتیږی۔ نو که اودس نه وُ مات۔ او موزې ئې وېستلې۔ نو د دې نه مینه چه ئې کومه مسح په موزو کړې وه۔ هغه ماته شوه۔ وس دې دواړه خپې وا ینځې۔ او نوی اودس ته ضرورت نشته۔ او که یوه موزه ئې وېستله۔ نو هغه بله موزه به هم وکاږی۔ د دواړو خپو اینځل به واجب وی۔

مسئله[6]:- که د مسح موده پوره شوه۔ په دې سره هم مسح ماته شوه۔ نو که اودس ئې نه وُ مات۔ موزې دې وباسی۔ خپې دې وا ینځې۔ نوی اودس ته ضرورت

[1] منیه ۱۲ [2] درمختار و منیه ۱۲ [3] شرح التنویر ۱۲ [4] درمختار و شامی ۱۲ [5] بحر و هدایه ۱۲ [6] شرح التنویر ۱۲

نښته - بیا دې موزې په ښپو کړي. که ئې خوښه وي. او که اودس ئې مات شوې وُ نو موزې دې او باسي - او پوره اودس دې وکړي. نو که موزې بیا په ښپو کول غواړي. د اودس نه پس دې په ښپو کړي که مسافرؤ نو بیا ورله د دریو شپو وُرځو پورې مسح جائزه ده. او که مقیم وُ. نو د یوې شپې وُرځې پورې.

مسئله[۱] :- که موزې ته ئې دننه دومره اوبه ورغلې وې. چه په هغې سره ئې ښپه یا د ښپې نه زیاته حصه لمده شوه. او حال دا وُ. چه ده په دې موزو مسح کړې وه. نو په دې لمدېدو سره ئې هغه مسح ماته شوه. وس به هغه بله موزه هم وکاږي. او دواړه ښپې به اُبنځي.

مسئله[۲] :- که موزه څیرې شوه. او د هغې نه د تللو په وخت د ښپو د دریو واړه ګوتو په مقدار ښپه ښکاریده. نو مسح پې جائزه نه ده. او که د دې نه کمه څیرې وه. بیا پې مسح جائزه ده. ځکه دا ضروري ده چه کوم مقدار د مسح فرض دې. په هغه مقدار کښې دننه څیرې ځائې رانشي.

مسئله[۳] :- که موزه د ښپو د ګوتو په برابر څیرې وه. نو د دغه ګوتو اعتبار به کیږي. مثلاً د غټې ګوتې د پاسه دومره څیرې وه. چه غټه ګوته او دا بله ورپسې ګوته ترې ښکاریده. نو مسح پې جائزه ده. ګوکه دغه دواړه ګوتې په مقدار کښې د دریو وړو ګوتو همره دي. هاں که دومره څیرې وه. چه دریمه ګوته ورسره هم ښکاریده. نو مسح پې جائزه نه ده.

مسئله[۴] :- که په یوه موزه کښې د دوؤ ګوتو همره ځائې څیرې وُ. او په بله کښې د یوې ګوتې همره. نو خیر دې مسح پې جائزه ده. او که یوه موزه ځائې په ځائې څیرې وه. نو دغه څیرې چه ټول رایوځائې کړې شي. که ټول د دریو ګوتو مقدار ته رسیده. مسح پې جائزه نه ده. او که نه رسیده جائزه ده.

مسئله[۵] :- که د موزې تسمه پرانستلې شوه یا وُشوکیده. خو د ښپې څه ځائې ترې نه ښکاریده. نو مسح پې جائزه ده. او که داسې وه. چه د تللو په وخت کښې ترې د دریو ګوتو همره ځائې په ښپه کښې ښکاریده. او هسې نه ښکاریده نو مسح پې جائزه نه ده. هاں که دومره ځائې ترې هسې ښکاریده. او د تللو په وخت

---

[۱] زیلعی ۱۲ [۲] درمختار و شامی ۱۲ [۳] شامی ۱۲ [۴] منیه ۱۲ [۵] هدایه و درمختار ۱۲

کېنس نه ښکاريږي - بيا پې جايزه ده

مسئله :- که موزه باقاعده موزه وه - خو خولې ئې ارته وه - بره ډېرکو دغاړے ئې دننه خپه ښکاريږي - نو خير دے مسح پې جايزه ده -

مسئله :- که موزے ئې دجرابو پاسه په خپو کړے وے - نو هم پې مسح جايزه ده -

مسئله :- که موزے ئې دچانه غلا کړے وي يائې په زور اخستے وے - يا په بله ناجايزه طريقه - نو کار خو ئې دگناه کړے دے - ليکن مسح پې جايزه ده -

مسئله :- که د لرگي يا دګټے يا دوُ سپينې موزے ئې جوړے کړے - مسح پې جايزه نه ده - ځکه چه عادةً پې لار ننشي وهلے کيدے

مسئله :- په جورابو باندے مسح جايزه نه ده - ليکن که څرمن ورته ډېره پورے ګنډلے شوے وه - يا دومره څونه وه - ليکن د پنړے په شکل ورته ګنډلے شوے وه - او درے څلور ميله مزل پکښې کيدے شه - يا څرمن ورته نه وه اچولے شوے - خو دومره مضبوطے او سنګينې وے - چه بے د تړلو نه په خپله په پښو ټينګ ولاړے وے او درے څلور ميله مزل پکښې کيدے شه - او نرے نه وے - او اوبه ئې نه راڅکودے - نو په دے صورتو نو کښې هم مسح جايزه ده -

مسئله :- د وړے جورابو نه چه څرمن د پنړے په شکل کښې اچولې شوې وي - بعضے خلق په هغے هم مسح کوي - نو لکه څنګښې چه بيان شو - مسح خو پې جايزه ده - ليکن د عالمانو اختلاف پکښې شته - لهٰذا احتياط په دے کښې دے - چه نه کوي پې - خو دا ئې چه دا فتوی نه ده - تقوی ده -

مسئله :- په بوټانو هم مسح جايزه ده - خو شرط دا دے چه په او دس کښې څومره حصه خپه چه اينځل فرض دي - هغه پکښې ټوله پټه وي - يعنې خپه سره د پړکو - او بوټان ئې په داسے طريقه تړلي وي - چه د خپے په دغه حصه کښې هيڅ ځائے نه ښکاري - ليکن که د درو ګوتو مقدار نه کم ښکاريږي - نو هم خير دے - مسح پې جايزه ده -

مسئله :- که د سر د مسحے په بدل کښې په ټوپۍ يا په پټکی مسح کول غواړي - يا د مخ او لاسو په بدل کښې په برقعه مسح کول غواړي - يا د لاسو نو اينځلو

له شرح التنوير ١٢ ٢ غنيه ١٢ ٣ درمختار ١٢ ٤ درمختار ١٢ ٥ ردالمنتقی ١٢ ٦ شرح التنوير ١٢ ٧ کبيري ١٢ ٨ درمختار ١٢ ٩ شرح التنوير ١٢

په بدل کښې په دستانو مسحه کول عواړی - دا مسحه جایزه نه ده -

**مسئله** :- که د چاپوه خپه د پړکی نه بره پریکړے شوے وه - او په بله خپه ئے موزه په خپو کړے وه - نو په دغه موزه ورله مسحه جایزه ده - او که خپه ئے په پړکی کښې پریکړے شوے وه - او څه حصه د پړکی نه پاتے وه - نو دد غه حصے اینځل فرض دی - نو دهغه بلے خپے اینځل به درسره هم فرض وی - مسحه د موزے پے جایزه نه ده -

**مسئله** :- که د پړکی نه لاندے د چاخپه پریکړے شوے وه - نو په کوم برابر چه د موزے مسحه کیږی - که په هغه برابرے د لاس د دریو گوتو همره ځائے پاتے وُ - چه فرض مسحه پے کیدے شوه - او په دغه خپه ئے هم موزه په خپو کړه - نو مسح پے جایزه ده - چه مسح د موزے د پاسه په هغه پاتے ځائے کوی - او که دومره ځائے پکښې هم نه وُ پاتے - مسح د موزے پے جایزه نه ده - نو د هغه بلے خپے اینځل به درسره هم فرض وی - ځکه چه اینځل او مسحه نه جمع کیږی -

**مسئله** :- که په موزو ئے مسحه شروع کړے وه - یو شو اروزے لا نه وُ پوره شوی - په دے مینځ کښې دے مسافر شه - نو دیوے شپے ورځے پځائے له د دریو شپو ورځو پورے مسح جایزه شوه - او که څوک مسافر وُ - په سفر کښې ئے په موزو مسحه کوله بیا مقیم شه - نو په سفر کښې ورله درے شو اروزه مسحه جایزه ده - خو دس هغه خبره لا ړه - نو که یوه شپه ورځ لا نه وی پوره شوی - د پوره کیدو پورے مسحه کولے شی - او که پوره شوے وی - نو وُس دے موزے اوباسی - خپے دے واینځی -

| | |
|---|---|
| **مسئله** :- که د چانوک پرے کړے شوے وُ - یا ئے خپے چاوَدے وے - او په هغے ئے جاوَله یا دارزده یا نور څه اینخی وُو - نو که لوبے کول ئے بد وی - د هغے د پاسه دے او به اوبیوی - او که دا اورله هم نه وی ښه - مسحه دے پے وکی - یعنے لوند لاس دے پے را کاږی - که نقصان پکښې نه وُ - | په خوږ ځائے یا په پټئ مسحه کول |

**مسئله** :- که په لاس یا په خپه وغیره ئے دانه وه - یا زخم وُ - او اینځل ورله نه وُو شه - نو اینځی دے نه - بلکه په دغه خوږ ځائے دے مسحه وکی - یعنے که نقصان ده ورله نه وُ - نو لوند لاس دِ پے را کاږی - باقی دے واینځی -

**مسئله** :- په پټئ مسحه هله جایزه ده - چه د هغے د لاندے چه کوم خوږ ځائے دے - د هغه ځائے اینځل نقصانی وی - او که په یخو اوبو ئے اینځل نقصانی وُو - او

---

له شرح التنویر ۱۲ که هدایه و دُرر ۱۲ ته منیه ۱۲ که در مختار و شامی ۱۲ ته قاضی خان و بحر رائق و منیه ۱۲

په تودو نقصاني نه وُو - نوچه په تودواوبو قدرت لري. اینځې به یې - اوکه اینځل یې بالکل نقصاني وَو - نو لوند لاس دے پرې راکاکې - اوکه لوند لاس راخکودل ورله هم نقصاني دَو - بیاورله دپټئ دَپاسه مسحه جایزه ده -

**مسئله[1]** :- که په څو ځائے یې پټئ تړلے وه - اودَ هغې په پرانستلو کښې ضرروَ - یائے پرانستل ډیرګران وُو - عذروُ - نو پرانزی دے نهبلکه دَ پټئ دَپاسه دے مسحه وکی - اوکه دا سے حال نه وَ - نو پرا دے نزی - پس که په څو ځائے بانے مسحه کول بدنه وو - په هغې دے مسحه وکی - اوباقي دے واینځي - اوکه په څو ځائے بانے مسحه کول نقصاني وو - نو کوم کوم ځائے له چه او به بدے نه وی - هغه دے واینځي - اوپه څو ځائے دے دَ پټئ دَپاسه مسحه وکی -

**مسئله[2]** :- دَ لاس وغیره اډوکے چه مات شي - داقاعده ده - چه دَ هغې دَپاسه دَ لرګو دړے تړی - او هغې نه پانه ویلے شي - دَ هغې دَ مسحے هم دا حکم دے لکه دپټئ -

**مسئله[3]** :- که پټئ دَزخم نه زیاته وه - او پرانستلے یې نه شوه - نولکه چه مخکښې بیان شوی دی - د پټئ دَپاسه دے مسحه وکی - په کوم برابر چه زخم دے - په هغې هم اوپه کوم برابر چه زخم نشته په هغې هم -

**مسئله[4]** :- دَ پټئ اودَپانے په مسحه کښې غوره داده - چه مسحه په ټوله وُکی - لیکن که دَ نیمے نه یې په زیاته حصه وکړه - نوهم جایزه ده - خو که صرف په نیمه یادَ نیمے نه یې په کمه وکړه - دا جائزنه ده -

**مسئله[5]** :- که اودس یې جوړ وُ - او پټئ پرانستلے شوه - او غورځیدله - اوزخم لا نه وُ جوړ شوے - نو بیا دے وتړی - اودډ مبیئ مسحه کافي ده - بیا مسحے ته ضرورت نشته - اوکه زخم جوړ شوے وُ چه بیا ضرورت دَ پټئ تړلو نه وُ - نوبیاد مبیئ مسحه ماته ده - هغه ځائے دے واینځي - هله دے مونځ کوی - اودوباره اودس نوی کولو ته ضرورت نشته -

**مسئله[6]** :- فرض که چه سړی په خپه پټئ تړلے وه مثلاً - اودَ مانځه په دویم رکعت کښې تے هغه ولویده - زخم یې جوړ شه - نومونځ یې مات شه - دے به دَ زخم هغه ځائے اینځي - اودامونځ به بیا کوی - اوکه زخم نه وُ جوړ - نو اولنی مونځ

---

[1] درمختار ۱۲ [2] درمختار ۱۲ [3] منیه ۱۲ [4] درالمنتقیٰ ۱۲ [5] کبیری ۱۲ [6] هدایه ۱۲

په پوره کی - بل ته ضرورت نشته -

**مسئله**[1] :- که زخم ئے جوړ شه - او پټئ وغیره وُنه لویده - او نور اودس ئے جوړ وُ - نو هغه مسحه ئے ماته شوه - اوس به دغه ځائے اینځی - هله به ئے مونځ صحیح کیږی - هاں که پټئ کلکه نختے وه - چه لرے کول ئے ګران وو - نو اینځل ئے ضروری نه دی -

**مسئله**[2] :- که د اودس په اندامو نو کښ ئے په څه ځائے پټئ لګیدلے وه - او اودس ئے وکه - په پټئ ئے مسحه وکړه - بیائے موزے په خپو کړے - او زخم ئے لا جوړ نوُ چه اودس ئے مات شه - نو وس چه اودس کوی - په پټئ خو به خود مسحه کوی - او مسحه د موزو وله هم جائزه ده - او که مینه زخم جوړ شه - او د ریستوئے اودس مات شه - نو وس چه اودس کوی - خپے به اینځی - لیکن که د موزو په خپو کولو نه پس ئے لا تر اوسه پورے اودس نه وُ مات شوے - او زخم ئے جوړ شه - پټئ ئے او غورځوله او هغه ځائے ئے وا ینځه - بیا ورستوئے اودس مات شه - نو وس چه اودس کوی - مسحه د موزو وله جائزه ده -

**مسئله**[3] :- معذور له په موزو مسحه جائزه ده - او که نه - په دے کښ تفصیل دے - ځکه چه په کوم وخت کښ ده اودس کړے - او بیائے موزے په خپو کړے په دے دومره ساعت کښ دننه به ده ته څه وخت هغه عذر چه دے د کوم عذر په وجه معذور شوے دے - یا پیښ شوے وی یا نه - که پیښ شوے وُ - نو که د مانځه په وخت کښ دننه دننه بله څه خبره او دس ماتونکے پیښه شوه - او د هغے په وجه ئے اودس کاوُ - او دغه مانځه وخت لا پاتے وُ - نو خو د مسحه به کوی - لیکن د مانځه د وخت په وتلو سره څه رنګ چه د ده اودس ماتیږی - دا رنګ په دے سره ئے مسحه هم ماتیږی - نو چه د وخت وتلو نه ورستو دے اودس کوی - خپے به هم اینځی - او که په هغه ساعت کښ دننه دننه ورته هغه عذر نه وُ پیښ شوے - نو د وخت په وتلو سره اګر که د ده اودس ماتیږی - خو مسحه ورله جائزه ده - لکه د روغ سړی که مسافر وُ - نو درے شو ارو زه - او که مقیم وُ - نو یو شو اروز - او د معذور بیان په راتلونکی باب کښ په تفصیل سره راځی -

**مسئله**[4] :- که د چا په بدن کښ په څه ځائے داسے زخم | د معذور بیان

---

[1] بحر رایق ۱۲ [2] در مختار و شامی ۱۲ [3] در مختار و شامی ۱۲ [4] هدایه و در ۱۲

ؤ- چه هر وخت ترے نه وینه بهیږي - یا ئې پوزه داسے مانه شوه - چه اوږو وږدېږه نه یا دَوړی بولو ناجوړتیا ئې وه - هر وخت به ترے قطره وته - یا څوک داسے ناجوړه وُ چه هر وخت به ئې باد تلل - یا ښځه داسے ناجوړه وه - چه بے دَ حیض نه ئې هم هر وخت وینه تله - یا دَ چا غولۍ خوږ وُ - هر وخت به ئې نو راوتل - اوده به دَ مانځه په وخت کښې دومره خالی موقعه هم نه مونده - چه دَ اودس فرض پکښې قدرے پوره کی - او مونځ پے ادا کی - نو دا عذر یا دَ دے په شان بل چه په چا کښې وی - هغه ته معذور ویلے شی - دَ معذور حکم دا دے - چه دے دِ دَ هر فرض مانځه په وخت کښې اودس کوی - لیس دا پوره ده - دکومے پورے چه دَ دغه مونځ وخت باقی وی - ده اودس هم باقی وی - خو دَ کوم عذر په سبب چه دے معذور شوے دے - که دَ هغې نه سِوا بل څه داسے وجه ورته پیښه شوه - چه په هغې سره اودس ماتیږي نو وخت اګر که باقی وی - دَده اودس به مات شی - دَدے مثال دا دے چه دَیو سړی دَ پرهرنه به لږه لږه وینه بهیده - او دومره ساعت هم نه وو ورېیده چه دے پکښې اودس او مونځ وکی - دے معذور سړی ماسپښین ملے اودس وکه نو دکومے پورے چه دَ ماسپښین وخت باقی وی - دَده اودس به هم باقی وی - اګر مه وینه چه دَ دغه پرهرنه بهیږي - په هغې سره دَده اودس نه ماتیږي - ایکن که بله څه خبره اودس ماتونکے ورته پیښه شوه - لکه واړه بول ئې وکړه مثلاً یا بل څه ځاے ئې وینے شوه - نو په دے سره به ئې اودس مات شی - اګر که دَ ماسپښین وخت لا پاتے وی - او که دَ دغه پرهر دَ وینے دَ تلو نه سوا بله څه خبره ورته نه وی پیښه شوے - نو دَ کومے پورے چه دَ ماسپښین وخت پاتے وی - دَده اودس به ښه کښے شی - وس به دَ مازیګر دَ مانځه دَپاره بل اودس کوی -

**مسئله**[1] :- بیان شو - چه معذور به دَ هر فرض مانځه په وخت اودس کوی نو په دغه وخت کښې په دغه اودس سره فرض ادا قضا نفل و غیره هر څه کولے شی -

**مسئله**[2] :- سړے هله معذور کیږي او دَ معذور حکم پے لګی چه دَ فرض مانځه یو پوره وخت پے داسے تیر شی چه په هغې کښې ئې مثلاً دَ پرهرنه وینه وُنه دریږي او په دغه وخت کښې ورته دومره موقعه هم خالی ملاو نه شی چه فرض اودس پکښې

[1] هدایه ١٢ [2] در مختار و شامی ١٢

وکی - او مونځ ادا کی - او که په دغه وخت کښې ئے د ننه د لږ ساعت دپاره وینه دروه وردریږه چه اودس او مونځ ئے پکښې کړے شه - نو معذور به ورته نه وایو - او کوم حکم دَ معذور چه بیان شوے دے - هغه به پے نه لګوو - هاں که دَ مانځه پوره وخت پے داسے تیرشه - چه په هغې کښې ئے وینه دَ دومره لږ ساعت دپاره هم ونه دریږه نو معذور شه وس به پے حکم دَ معذور لګوو - چه دَ هر وخت دپاره دے اودس کوی - دَدے نه پس چه دَ بل مونځ وخت شی - نو دا ضروری نه ده چه په دے وخت کښې ئے هم هر ساعت وینه بهیږی - بلکه که په دے دویم وخت کښې ئے دغه پرهرنه یو ځل قدرے وینه اورنه - نو هم معذور دے - ګوکه باقی وخت کښې بنده وی - هاں که دَ هغې نه پس دَ فرض مانځه یو پوره وخت داسے تیرشه - چه د دغه پرهر نه ئے یو ذره وینه هم ونه بهیږه - نو وس معذور نه دے - نو معلومه شوه چه په اول اول کښې دَ معذور کیدو دَپاره دا خبره ضروری ده - چه دَ فرض مانځه پوره وخت پے داسے تیرشی - چه هغې کښې دَ دومره لږ ساعت دَپاره هم مثلاً وینه ونه دریږی چه دے پکښې اودس او مونځ وکی - نو په دے سره معذور شه - بیا که دَ بل مانځه په وخت کښې ئے یو ځل قدرے وینه او بهیده - نو هم معذور دے - او دَ معذورۍ والی نه به هله وځی چه دَ مانځه وخت پے پوره داسے وځی - چه دَ دغه پرهرنه ئے وینه بالکل لا په نه شی -

**مسئله:-** فرض که چه په سړی لا دَ معذورۍ والی حکم نه وُ لګیدلے - او دَ ماسپخین دَ مانځه وخت شروع شوے دَ - وس ئے پرهرنه وینه بهیدل شروع شی - او دغه شان بهیده - نو دے دِ دغه وخت دَ آخیری حصے پورے انتظار دکی که وینه بنده شوه نو اودس او مونځ به وکی - او که بنده نشوه - نو هم دے په آخر وخت کښې اودس وکی - او مونځ دے ادا کی - بیا که دَ ماز دیګر په وخت کښې ئے وینه بنده شوه - نو اودس دے وکی - مونځ دے ادا کی - او دَ ماسپخین مونځ دے هم راوګرځوی - ځکه چه معذور نه دے - او که دَ ماز دیګر په وخت کښې ئے وینه د دومره لږ ساعت دَپاره قدرے هم ونه دریږه چه دے پکښې اودس او مونځ وکی - نو خیر دے که وینه ئے هسې و بهیږی - اودس دے وکی - او دَ ماز دیګر مونځ دے پے ادا کی - نو چه دَ ماز دیګر وخت ټول ختم شی - او وینه ئے دَ لږ ساعت دَپاره هم ونه دریږی مونږ به وایو چه دے معذور دے - دَ ماز دیګر او دَ ماسپخین کوم مونځ چه ئے

له زیلعی ۱۲

کړې دے۔ دَ هغې راګرځولو ته ئې ضرورت نشته۔

**مسئله** [۱] :- معذور چه په حالت دعذر کښې دکوم فرض مانځه په وخت اودس کړې دے۔ دَ دغه وخت په وتلو سره ئې اودس ماتیږی۔ نو که دَ صبا د مانځه اداکولو دَ پاره ئې اودس وکه۔ نو دَ نور ختو نه پس په دغه اودس مونځ نه شی کولے اوکه دَ نور ختو نه پس ئې اودس وکه۔ نو که دَ دغه عذر نه سوا په بله څه وجه ئې دغه اودس نه وی مات شوے۔ دَ ماسپخین مونځ پرے کولے شی۔ هاں بیا چه دَ ماسپخین وخت وځی۔ دغه اودس به ئې مات شی۔

**مسئله** [۲] :- که معذور اودس دَکه۔ په داسے حال کښې چه مثلاً وینه ئې بنده وه۔ او دَ وخت مونځ ئې هم په داسے حال کښې اداکه۔ بیا دغه وخت اووت او ده ته څه خبره اودس ماتونکے نه وه پیښه شوے۔ نو دَ وخت په وتلو سره دَ ده دغه اودس نه ماتیږی۔

**مسئله** [۳] :- که معذور دمانځه په وخت کښې اودس وکه۔ نو د کوم پورې چه دَ دغه مونځ وخت پاتے وی۔ دَ ده اودس به باقی وی۔ لیکن که اودس ئې بے دَ دغه عذر نه یواځې دَ بلې خبرې په وجه کړے وُ۔ او بیا ورته دَ عذر نه خبره پیښه شوه۔ یا ئې د دغه عذر په وجه اودس کړے وُ۔ خو بیا ورته بله څه خبره اودس ماتونکے پیښه شوه۔ نو اودس به ئې مات شی۔ اګر که وخت باقی وی۔ لکه دَ پرهرنه دَ وینې تللو په وجه څوک معذور وُ۔ مثلاً هغه دَ ماسپخین په وخت کښې اودس وکه۔ بیا ئې وا ړه بول وکړه۔ او وینه ئې بنده وه۔ اودس ئې وکه۔ دَ اودس نه پس ئې دَ پرهرنه بیا وینه او بهیده۔ نو په دے وینې بهیدلو سره ئې اودس مات شه ځکه چه هغه اودس ئې دَ واړه بولو په وجه کړے وُ۔ یا مثلاً دَ سړی دَ یو سپیږمے نه وینه تله۔ معذور وُ۔ دَ ماسپخین په وخت ئې اودس وکه۔ او دغه وینه ئې جاری وه۔ بیا پس دَ اودس نه ئې دَ بلې سپیږمے نه وینه جاری شوه۔ نو اودس ئې مات شه یا په چا ننګیُ ختلی وه۔ دَ یوے ننګیُ دَ وینې په وجه دے معذور شوے وُ۔ نو د ماسپخین په وخت کښې ئې اودس وکه۔ پس دَ اودس نه ئې بیا بله ننګیُ وینې شوه۔ او وینه تے او بهیده نو اودس ئې مات شه۔ اګر که دماسپخین وخت لا نه وی وتے۔

**مسئله** [۴] :- که څوک معذور وُ۔ او یو کامل وخت پے داسے اووت۔ چه هغه عذر

[۱] هدایه و درر ۱۲ [۲] در مختار رد المحتار ۱۲ [۳] شرح التنویر و رد المحتار و منیه و غنیه ۱۲ [۴] در مختار و شامی ۱۲

تے ظاهر نشه مثلاً دَ ماز یګر تول وخت پے تیر شه - او دَ پر ځمر نه ئے وینه بالکل نه بهیده نو دے دَ دغه معذورو الی نه اووت - نو ده چه نن دَ ماسپخین مونځ کړے وُ - په هغے کښې خلور صورتو نه دی - که[1] دَ ماسپخین په وخت کښې وینه بنده شوے وه - او دَ ماسپخین اودس او مونځ ئے په پاکئ سره کړے وُو - یا دَ ماسپخین دَ اودس کولو په وخت کښې تے هم وینه تله او په مانځه کښې هم - یا دَ ماسپخین دَ اودس کولو په وخت وینه بنده وه - او دَ ماسپخین مونځ چه ئے کاوُ - وینه تے تله - نو په دے دریوُو اړو صورتونو کښې دَ ماسپخین مونځ راګرځولو ته ضرورت نشته - څلورم صورت دا دے چه ماسپخین ئے اودس کاوُ - نو وینه ئے بهیده - او چه مونځ ئے کاوُ نه بهیده - بیا بالکل بنده شوه - په دے صورت کښې دَ ماسپخین مونځ راګرځول ضروری دی - ځکه چه دے په هغه وخت کښې معذور نه وتے وُ -

مسئله[1] :- که دَ معذور وینه وغیره په جامه لګیدلے وه - او ده ته دا معلومه وه - چه زه که دا وینځم او مونځ پے کوم - مونځ به م لا نه وی خلاص کړے - او دا به بیا ناپاکه شی - نو دَ هغے اینځل پے واجب نه دی - او که دا ورته معلومه وه - چه په دومره ساعت کښې به نه پلیتیږی - نو چه دَ روپئ دَ مقدار نه زیاتی وی اینځل ئے واجب دی - فتویٰ په دے ده - چه بے دَ هغے دَ اینځلو نه ئے مونځ نه کیږی -

مسئله[2] :- که معذور دَ وینے وغیره په بندولو یا په کمولو قادر وُ - مثلاً په تړلو سره یا په چیرړے یا په قطئے ایښودلو سره یا په بله څه ذریعه نو دغه کار کول پے واجب دی - او چه وینه وغیره ئے په دے سره بنده شی نو معذور نه دے - او که څوک داسے وُ - چه وینه وغیره ئے خاص دَ سجدے په وخت کښې تله - بے دَ سجدے نه نه تله نو خیر دے - مونځ چه کوی په ولاړے یا په ناستے دے په اشاره سره وکی - او که داسے وُ - چه په ولاړے تے تله - او په ناستے نه - نو مونځ دے په ناستے وکی - لیکن که داسے وُ چه خاص په ملاستے تے نه تله - نو په ملاستے دے مونځ نه کوی - بلکه با قاعده په ولاړے به کوی - یا په ناستے - یعنے دَ ملاستے دَ مانځه دَ پاره صرف دا عذر کافی نه دے -

مسئله[3] :- که څوک زخمی یا بل مریض داسے وُ چه دَ هغه دَ لاندے هر څه زړوکے چه به او غوړوے شه - هغه به ئے دَ مانځه دَ فراغت نه مینه پلیتیده - نو که هغه په دغه ناپاک زړوکی مونځ کوی خیر دے - او که مریض[4] دومره سخت مریض وُ - چه په ملاستے

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] درو در ۱۲ [3] خلاصة الفتاوىٰ و در مختار ۱۲ [4] بحر رایق و در مختار ۱۲ -

ئې په اشاره مونځ کاوُ - او دَ هغه دَ لاندې زړوکے پلیټ وُ - بل تے دَ لاندې غوړیدے شه - پلیتیږه هم نه - خو دَ خوزولو را خوزولو په وجه دَ مریض مرض نور زیاتیده نو خیر دے په دغه ناپاک زړوکی دے مونځ کوی -



دَ حیض او دَ استحاضے بیان

**مسئلہ** :- په هره میاشت کښې دَ ښځو نه کومه معروفه وینه چه ځی - هغے ته حیض وېلے شی - دَ حیض موده کم نه کم درے وُرځے او درے شپے ده - او زیات نه زیات لس ورځے او لس شپے - نو که دَ دریو شپو ورځو نه مینه وینه بنده شوه - حیض نه دے - بلکه استحاضه ده - مرض دے - او که دَ لسو شپو ورځو نه وا وختیږه نو دا زیاتی حصّه[۲] په حیض کښې حساب نه ده - بلکه دا هم دَ استحاضے ده -

**مسئلہ**[۳] :- دَ ښځو کالونه مینه زړوکی نشی کیدے - که چینئ دَ ښځو کالونه کمه ده - او څه وینه ئے ولیده نو دا حیض نه دے بلکه استحاضه ده - او دا رنګ ښځه چه پنځه[۵] پنځوس کاله نه وُرسی - بیا اکثره خبره داده چه زړوکی ئے نه کیږی - لیکن که په دا سے عُمر کښې ئے وینه سُور رنګے یا تور رنګے ولیده هغه به حیض وی - اګر رنګ ئے زیړ یا شین یا وُدی یا خړ وُ - نو حیض نه دے - لیکن که دَ دے عُمر نه مینه ئے هم زړوکی په دے رنګ کیدل - او دا ئے عادت وُ - دا به هم حیض ګڼړلے شی -

**مسئلہ** :- دَ حیض په زمانه کښې سور - تور - زیړ - شین - خړ - سِوا دَ خالِص سپین والی نه هر رنګ چه وی - دا ټول حیض دے - نو که څه مالوچ یا چیرړه وغیره ئے ایښے وه - او هغه ئے بیا بالکل سپینه ولیده - زړوکی ئے پاک شو -

**مسئلہ** :- که په اول اول وار دَ چینئ زړوکی بیلمازه شو - نو که لس شپے ورځے وُو - یا دَ دے نه کم - او دَ درے ورځو نه زیات وُو - دا ټول حیض دے - او که دَ لسو شپو وُرځو نه زیات وو - نو لس شپے وُرځے ئے حیض دے - او کومه چه دَ دے نه زیاتی ده - هغه استحاضه ده -

**مسئلہ** :- دَ زړه کوکیدلو مے څه خاص عادت وُ - بیا په یوه میاشت کښې ئے دَ هغے نه زیات وُشو - خو دَ لسو شپو وُرځو نه زیات نه وُو - نو دا ټول حیض دے - او که دَ لسو شپو ورځو نه هم زیات وشو - نو څو مره وُرځے چه ئے عادت وُ - هغه حیض دے او باقی استحاضه ده - مثلاً دَ یو ے ښځے په هره میاشت کښې څلور ورځے عادت وُ - بیا

---

[۱] هدایه ۱۲ [۲] نو که دا حیض ئے په عُمر کښې اول وار شوے وی - لس وُرځے حیض دے - باقی استحاضه ده - او که اول وار نه وُ - بلکه دَ حیض عادت ئے خاص دَ یو څو ورځو وُ نو هغه وُرځے ئے دَ حیض دی - باقی استحاضه لکه چه درستو به بیان شی - ۱۲ منه [۳] بدائع ورد المحتار ۱۲ [۴] تبیین ددر مختار ۱۲ [۵] هدایه ۱۲

په یوه میاشت کښې ئې نهه ورځې یا لس ورځې وشو. دا ټول حیض دے. خو هله که بیا دے نه وروستو کم نه کم پنځلس ورځې پاکه دی. او که د لسو شپو ورځو نه زیات وشو. نو څلور ورځې ئې حیض دے. او دا نوره ټوله استحاضه ده.

**مسئله[۱]**:- یوه ښځه داسې وه. چه خاص عادت ئې هیڅ مقرر نه دے. کله ئې ځوکی ښځه ورځې وشی. کله اوه ورځې. مثلاً دارنګ بدلیږی رابدلیږی. بیائې په یوه میاشت کښې پوره لس ورځې وشو. نو دا لس ورځې به ټولې په حیض کښې حسابیږی. خو هله که بیا د دے نه وروستو کم نه کم پنځلس ورځې پاکه وی. او که د دے ښځې پلیتی د لسو شپو ورځو نه هم واوښتیده. نو د دے میاشتے نه اول چه ئې ځوکی شوی ؤ. هغه ته دے اوګوری څومره ورځې چه هغه وو. لس د هغې څومره ئې دا حیض دے. او باقی استحاضه ده.

**مسئله[۲]**:- که ځینئ په اول اول ځل وینه ولیده. او دغه وینه داسې روانه شوه. چه میاشتې پې تیرې شوې خو بنده نه شوه. نو په کومه ورځ چه ئې وینه لیدلے د هغې نه د لسو شپو ورځو پورے ئې حیض دے. بیا شل ورځې استحاضه ده. بیا لس ورځې حیض او شل ورځې استحاضه. دارنګ د آخره پورے.

**مسئله[۳]**:- د دوو حیضونو په مینځ کښې د پاکئ موده کم نه کم پنځلس ورځې ده او د زیاتې مودے ئې څه حد نشته. نو هر څومره میاشتې چه ئې وینه ونه لیده. پاکه به وی.

**مسئله[۴]**:- که درے شپې ورځې ئې پلیتی وشوه. بیا پنځلس ورځې وینه بنده وه. بیائې درے شپې ورځې پلیتی وشوه. نو په مینځ کښې پنځلس ورځې د پاکئ دی. او اول هم حیض دے. او آخری هم. او که یوه ورځ یا دوه ورځې وینه راغله. بیا پنځلس ورځې بنده وه. یا یوه ورځ دوه وینه راغله. نو اوله او آخره وینه هم د استحاضې ده. حیض نه دے. او په مینځ کښې پنځلس ورځې هم د پاکئ دی.

**فائده**:- که د ښځې پلیتی وشوه. خو د دریو شپو ورځو نه کمه وه. نو لکه چه بیان شوی دی. هغه حیض نه دے. ولے هله چه وروستو ئې کم از کم پنځلس ورځې پاکه وی. او که پاکی ئې د دے نه کمه وه. نو د هغې تفصیل به مخکښې راشی.

**مسئله[۵]**:- که د دوو وینو په مینځ کښې د دیارلسو ورځو نه کمه پاکی وه. نو د دغه پاکئ

---

[۱] بحر و شامی ۱۲ [۲] رد المحتار ۱۲ [۳] تبیین و هدایه ۱۲ [۴] شامی ۱۲ [۵] در مختار و رد المحتار ۱۲

هیڅ اعتبار نشته - لکه د حیض په دریو کښې ورله یوه ورځ وینه راغله - بیا دوه ورځې پاکه وه - په څلورمه ورځ ورله بیا وینه راغله - نو دا څلور واړه ورځې د حیض دی - اوکه دوو وینو په مینځ کښې پاکی د پنځلسو شپو ورځو نه کمه وه - او د دیو نه زیاته - یا دریې شپې ورځې وه - نو دا پاکی به په حیض کښې حسابیږی - اوکه نه - په دے کښې ښین روایت دی - خوکوم چه د امام صاحب رح آخری قول دے - او ډیرو درستینی عالمانو پے فتوی ورکړے - او هم آسان دے - هغه قول د امام ابو یوسف صاحب دے - امام ابو یوسف صاحب وائی - چه دا پاکی پاکی نه ده - بلکه په وینه حساب ده - نو که یوه ورځ دوه ورځې وینه راغله - او بیا د پنځلسو ورځو نه کمه موده پاکه وه - بیا یوه ورځ دوه وینه راغله - نو د دے پاکوالی اعتبار نشته - بلکه دا به وایو چه د اولے ورځے نه ئے د آخره پورے برابره وینه تلے ده - نو څومره ورځے چه ئے د زړوکی عادت وو - هغه به د حیض شی - او باقی د استحاضه - مثلاً عادت ئے وو - چه د میاشتے په پنځلسم شپاړسم اوولسم به ئے زړوکی کیدل - بیا یوه میاشت کښې داسے وشوه - چه په پنځلسم تاریخ ورله وینه راغله او بیا څوارلس ورځے پاکه وه - بیا یوه ورځ وینه راغله - نو مونږ به وایو چه شپاړس ورځے برابر وینه تلے ده - نو په دے کښې اولے درے ورځے چه دی هغه د حیض دی - او باقی دیارلس د استحاضه - اوکه عادت ئے د اتلسم نولسم شلم وو - نو دا درے ئے د حیض دی او اولے درے او آخری لس د استحاضه دی - اوکه عادت ئے هیڅ نه وو - بلکه دا ئے د زړوکی اوله پیره وه - نو اولے لس به ئے د زړوکی شی - او باقی شپږ د استحاضه -

**مسئله**[۱] که عادت ئے لس ورځے وو - او په یوه میاشت کښې ورله د دغه عادت نه یوه ورځ مخکښے وینه راغله - بیا لس ورځے بنده وه - بیا یوه ورځ وینه راغله - نو د امام ابو یوسف صاحب په نزد مینځنئ لس ورځے د حیض دی - او اوله وینه او آخری وینه د استحاضه ده - اوکه په دے صورت کښې ئے عادت د لسو ورځو نه کم وو - نو د عادت هغه ورځے ئے د حیض دی - او باقی نورے د استحاضه دی -

**مسئله**[۲] :- که د ښځے حمل وی - او وینه ورله راغله - نو هر څومره ورځے چه وی دا حیض نه دے - بلکه استحاضه ده - ځکه چه د حمل په حالت کښې زړوکی نه کیږی -

د حیض احکام | **مسئله**[۳] :- د حیض په حالت کښې مونځ کول او روژه نیول صحیح

---

[۱] شامی ۱۲ [۲] در مختار ۱۲ [۳] مجمع الانهر ۱۲

نه دی - خو دومره فرق دے چه مونځ بالکل معاف دے - دَحیض دَختمید نه پس پے هم دَهغے قضا راوړل نشته - او روژه معاف کیږی نه - چه پاکه شی - بیا به ئے قضا نیسی -

مسئله[1] :- که وخت دَ مانځه وُ - خو مونځ ئے ونکه - بیا لا وخت پاتے وُ - چه زیږوکی ئے شروع شو - نو دَدغه وخت دَ مانځه قضا راوړل پے هم پس دَ زیږوکو اینځلو نه نشته معاف دے -

مسئله[1] :- که فرض مونځ ئے کاوُ - او په دے حال کښې زیږوکی شروع شو نو وس دے دغه مونځ پوره ی مات شه - او معاف شه - دَ زیږوکو اینځلو نه پس بیا دَدے قضا هم نشته - او که په سنتو یا په نفلو ولاړه وه - او حیض ئے شروع شه - نو دا مونځ ئے مات شه - خو چه زیږوکی ئے پاک شی - نو دَدے قضا به راوړی - او که فرض یا نفل روژه ئے نیولے وه - او په حالت دَ روژے کښې ئے حیض شروع شه - نو روژه ئے ماته شو - او پس دَ زیږوکو اینځلو پے دَدے روژے قضا شته - نیسی به ئے -

مسئله[2] :- که ښځه دَحیض په حالت کښې وه - نو خاوند له ئے پکار دی چه دَهغے دَ نامه نه په ښکته او دَ زنګانه نه په پورته حصه بانده ځپل جسم نه بلسوی - که په مینځ کښې څه زیږوکے وغیره نه وُ - نو په دے دومره ځائے بلسیدل حرام دی - اګرکه بے شهوته وی - هاں که په مینځ کښې څه زیږوکے وغیره دَ - بیا جائز دی - او جماع ورسره حرام ده - او که دَهغے دَ نامه نه پورته او دَ زنګانه نه ښکته ورسره جسم لګوی - نو اګرکه په مینځ کښې څه زیږوکے وغیره نه وی هم خیر دے - دا جائز دی - او دا رنګ سملاسنل ښکلول - او دَ هغے سره نا سته ولاړه کول او خوړل څکل وغیره وغیره دا ټول خیر دے ورله جائز دی -

مسئله[3] :- که خاوند ته معلومه وه - او قصداً ئے ورسره په حالت دَحیض کښې جماع وکړه نو دا ګناه کبیره ده - (یعنی لوئ ګناه دے) توبه دے او باسی - او غوره داده چه یو دینار یا نیم دینار خیرات هم ورکی - که دَحیض په اول حصه کښې کړی وی نو یو دینار - او که په اخیری حصه کښې ئے کړی وی نو نیم دینار - او یو قول دا دے - چه وِینه که سره یا توره وه نو یو دینار - او که زیړه وه نو نیم دینار -

مسئله[3] :- که ښځه ښکے چلنه او ریښتینے وه - او دَ خاوند پے یقین وُ او خاوند ته ئے او وئیل چه ځما زیږوکی شروع شوی دی - نو خاوند له ورسره جماع کول حرام شو - دَ

---

[1] درمختار ورد المحتار و بحر الرائق ۱۲ [2] در و رد ۱۲ [3] بحر رائق ۱۲

کومے پورے چه پاکه شوی نه وی - اوکه بنځه دروغژنه اوبشرمنه وه - دخاوند چه یقین نه وُ - او موده ئې هم دحیض نه وه - نو صرف دَ ښځې په دے وینا سره حرام دا[1] نه راځی۔

**مسئله**[2] :- دَ یوے ښځې زړوکی به هره میاشت دَ لسو ورځو نه کم یو څو ورځے کیده - مثلاً شپږ ورځے به کیدل - په دے میاشت کښې ئې هم دَ عادت سره برابر شپږ ورځے وُشو - بیا بند شو - نو دَ دے سره به دَ خاوند جماع کول هله جائز کیږی - چه دا ولامبی - اوکه دَ لمبلو قدرت ئې نه وُ نو داسے تیمم دِ وُکی چه فرض مونځ پے کیدے شی - اوکه نه ئې ولمبل - او نه ئې داسے تیمم وُکه - نو چه په ښځه باندِ دَ یو فرض مونځ وخت تیر شی - چه دَ دغه وخت قضا مونځ پے واجب شی - هله ورسره جماع جائزه ده - او دَ دینه مینه جائزه نه ده - نو که مثلاً غرمه یا دَ ماسپخین په اول وخت کښې ئې وینه بنده شوه - او دے وُنه لمبل - او تیمم ورله جائز نه وُ - نو چه دَ ماسپخین وخت تیر شی او دَ مازیگر وخت داخل شی - نو دَ دې په ذمه دَ دغه ماسپخین قضا مونځ لازم شه - وُس ورسره صحبت جائز دے۔

**مسئله**[3] :- که عادت ئې اوه ورځے وُ مثلاً - او وینه صرف پنځه ورځے راغله په شپږمه ورځ مثلاً ماسپخین مال بنده شوه - نو که دَ بندیدلو نه پس دَ ماسپخین دَ مانځه وخت لا پروُ - لیٰ صبر دے وُکی - خو دومره نه چه دَ مانځه وخت پے مکروه شی - نو که وینه بالکل بنده وه - وُدِ لامبی - او دَ ماسپخین مونځ دِ ئې اداکی - مونځ او دس پے شنه - اوکه روژه وه نو دَ صبا نه به روژے هم نیسی - لیکن دَ کومے پورے چه اُوه ورځے پوره شوی نه وی - دَ خاوند صحبت ورسره جائز نه دے۔

**مسئله**[4] :- که زړوکی ئې پوره لس ورځے او لس شپے وشو - نو دَ خاوند صحبت ورسره جائز دے - اگر که لمبلی ئې نه وی - او دَ مانځه وخت پے تیر شوی نه وی۔

**مسئله**[5] :- فرض که - چه دَ یوے ښځې عادت پنځه ورځے وُ - او په دے میاشت کښې ئې دوه ورځے پلیتی ولیده - بیا پلیتی بنده شوه - نو وُس پے لمبل واجب نه دی - او دس دے وُکی - او مونځ دے اداکی - خو دَ وخت په آخری حصه کښې چه وخت لا مکروه شوے نه وی - لیکن جماع ورسره همره جائزه نه ده - دَ دینه وس[6] ستو که پنځلس ورځے لا نه وے تیرے شوے - او پلیتی ئې بیا ولیده - نو وس به معلومه شی

---

[1] هدایه وشامی ۱۲ [2] عالمگیری وشامی ۱۲ [3] بحرالرائق ۱۲ [4] در المنتقیٰ ۱۲ [5] بحرالرائق ۱۲

چه هغه ځنګلنئ ورځے د حیض وے ۔ نو مونږ به وایُو چه د هغه وخت نه ئے د دے وخته
پورے کو یا دینه جاری وه ۔ نو دوه ورځے هغه اوور پسے درے نورے دا ټخه د حیض
وے ۔ د هغے مونځونه بے نشته ۔ وس دے غسل وکی ۔ او مونځ دے کوی ۔ او که پوره
پنځلس وُرځے تیرے شوے ۔ او وینه ئے بالکل وُنه لیده ۔ نو معلومه به شی چه هغه
دوه ورځے پلیتی چه وه ۔ هغه د استحاضے وه ۔ نو د هغه دوه وُرځو مونځونه چه
قضا شوی دی ۔ هغه به قضا راوړی ۔

مسئله :۔ د یوے ښځے عادت څلور وُرځے وُ ۔ په دے میاشت کښے څلور
وُرځے د ړوکو وشوے ۔ او لا هغه نښان کیږی ۔ وینه بنده نه شوه ۔ نو وُس دے
همره غسل نه کوی ۔ که پوره لس وُرځے او لس شپے وشوے یا د دے نه کم وشو ۔ نو
د دے وُرځو مونځ بے نشته ۔ ځکه چه دا ټولے د حیض دی ۔ مونږ به وایُو چه مینه
ئے عادت څلور وُرځے وُ ۔ لیکن وس ئے عادت بدل شه ۔ او که په یولسمه ورځ ورله هم
وینه راغله نو په یولسمه وُرځ ډِ وُلا مبی ۔ مونږ به وایُو چه څلور وُرځے د حیض وے ۔ او
دا نوره استحاضه وه ۔ نو د هغے څلور ورځو مونځونه بے نشته ۔ او د باقی شپږ ورځو مونځ
به قضا راوړی ۔

مسئله :۔ که ځړوکی ئے د لسو وُرځو نه کم وُشو ۔ او وینه داسے وخت بنده
شوه ۔ چه د مانځه وخت وُ ۔ خو ډیر لږ پاتے وُ ۔ دومره لږ وُ ۔ چه دا یکښے زر زر ځان نیاروی
او لامبی یا جامے اغوندی ۔ او په مانځه وُدریږی ۔ صرف یو ځل یکښے تکبیر تحریمه قدرے
په خوارۍ ویلے شی ۔ یعنی دومره وخت پاتے دے نور نشته ۔ نو په دے صورت کښے ئے
د دغه وخت مونځ لازم دے ۔ زر زر دے ولامبی او په مانځه دے وُدریږی ۔ که په مانځه
کښے دغه وخت او وت ۔ خیر دے مونځ دے پوره کی ۔ لیکن که مونځ د سحر وُ ۔ او نور
یکښے سپیره وکړه نو مونځ ئے مات شه ۔ قضا به ئے راوړی ۔ او که وینه داسے وخت بنده
شوه چه د مانځه وخت د دے نه هم لږ پاتے وُ ۔ دومره وُچه دا لامبی او بیا په مانځه وُدریږی
نو یو ځل یکښے هم تکبیر تحریمه نشی ویلے ۔ د دے نه مینه به وخت وُتے وی ۔ نو په دے
صورت کښے ئے د دغه وخت مونځ نشته ۔ او که ځړوکی ئے پوره لس ورځے او لس ئے
وشوے او په داسے وخت بند شی ۔ چه د مانځه د وخت یو بوټه ساعت قدرے پاتے وُ ئے
ئے یکښے نه شی ۔ خو صرف یو ځل ئے یکښے الله اکبر قدرے ویلے شو ۔ نو د دغه وخت مونځ

له شرح التنویر ۱۲ ۳ے دررد ۱۲

پے شته - قضا به ئے راوړی -

**مسئله** :- که ديوے ښځے وينه داسے روانه شوه چه مياشت پے اووسته - او ونه دريده - نو کومے ورزے چه ئے د حيض دی - په هغې کښې به مونځ نه کوی - او روژه به نه نيسی - او په باقی کښې به کوی - او که دا ورته معلومه وه چه حيض به ئے په مياشت کښې په اول کيده - خو دا ورته معلومه نه وه چه په کومو ورځو کښې به کيده - او شو ورځے به وُو - نو حکم ئے دادے چه فکر دے وُزغلوی - که غالب گمان لره ئے راغله - چه دا ورځے ئے د پاکئ دی - نو په دغه ورځو کښې به مونځ کوی - پاکه به گڼلے شی - او که غالب گمان لره ئے راغله چه دا ورځے ئے د حيض دی - نو مونځ به نه کوی - او ناپاکه به گڼلے شی او که فکر له ئے هيڅ رانغله - سوا د تردد نه - نو که تردد ئے په دے خبره کښې وُو - چه اے زه وُس د حيض په حالت کښې يم - او که وُس م حيض شروع شه - او که پاکه يم - نو په د ورځو کښې دے د هر وخت د مانځه د پاره نوے اودس کوی - او مونځ دے ادا کوی - او که تردد ئے په دے کښې وُو - چه اے زه وُس په حالت د حيض کښې يم - او که په حالت د پاکوالی کښې - او که وُس پاکه شوم - نو په دغه ورځو کښې به د هر وخت د مانځه د پاره غسل کوی او مونځ به ادا کوی - مثلاً ښځے ته دومره قدر سے ياد دی - چه حيض به په نصره مياشت کښې پوره کيده - او په آخری نيمه کښې به بنديده - د دے نه زيات ئے نور څه فکر له نه راځی - نو دا به د مياشتے په اوله نيمه حصه کښې د هر وخت د مانځه د پاره نوے اودس کوی - او مونځ به ادا کوی - او په آخری نيمه کښې به د هر وخت د مانځه د پاره غسل کوی - او مونځ به ادا کوی - او که د مياشتے په آخری نيمه کښې پاک کيدل ورته هم نه وُ ياد - هيڅ ورته نه وو ياد - نو د مياشتے په اوله نيمه کښې به هم او په آخری نيمه کښې به هم د هر وخت د مانځه د پاره غسل کوی - او مونځ به ادا کوی - او د کوم وخت د پاره چه غسل وکی - د هغې نه اول چه ئے کوم مونځ په غسل سره ادا کړے وُ - وُس به د احتياط د پاره هغه مونځ بيا قضا راوړی - او ورستو به د موجوده وخت مونځ ادا کوی - مثلاً د ماسپخين مونځ ئے په غسل ادا که - بيا د مازيگر وخت شه - وس به د مازيگر د مانځه د پاره غسل وکی - پس د غسل نه به د هغه ماسپخين مونځ قضا راوړی - بيا به د مازيگر مونځ ادا کوی - بيا چه د ماښام وخت شی - د ماښام د پاره به بيا غسل کوی - او پس د غسل نه به د مازيگر مونځ قضا راوړی - بيا به د ماښام مونځ ادا کوی - دا دغسے د آخره پورے -

**مسئله** :- د کومے ښځے حکم چه مخکښې بيان شه - چه د هر وخت د مانځه د پاره دے

له ردالمحتار ۱۲

غسل کوی - دَ ښځې بل حکم دا هم دے - چه خاوند دے ځان ته په دغه ورځو کښې دَ جماع دَپاره نه پریږدی - او قرآن شریف له دے لاس نه وروړی - او نفل روزه دے نه نیسی - او که په دغه ورځو کښې ئے څواسے قضا مونځ وکه - نو دغه دے پس دَ لسو ورځو نه راوګرځوی - خو دَ ینځلسو ورځو نه مخکښې مخکښې۔

مسئله[1]:- په مخکښنۍ مسئله کښې چه دَ کومې ښځې بیان شو - که ښځې ته صرف دومره معلومه وه - چه زړوکی به ئے په میاشت کښې صرف یو ځل کیدل - او شروع کیدل به دَ شپې نه - دَ دے نه زیات څه نور هیڅ نه یادیږه - او وس دَ روژے میاشت وه - نو فرض ادا روژے به ټولے نیسی - خو دَ رمضان نه روستو به بیا شل روژے قضا هم راوړی - او که دا ورته قدرے معلومه وه - چه زړوکی به ئے دَ ورځے شروع کیدل - نور ورته هیڅ نه معلومیږه - نو روژے خو به ټولے نیسی - وے روستو به دویشت روژے بیا قضا راوړی۔

مسئله[2]:- دَ واده شوے ښځې دَپاره په حالت دَ حیض او په حالت دَ پاکوالی کښې قطنه کیخودل یعنې ځان ته مالوچ وغیره کیخودل غوره دی - او ناواده شوے دَپاره خاص په حالت دَ حیض کښې - او په ځینې کتابونو کښې ئے راوړی دی چه واده شوے ښځې دَپاره په حالت دَ حیض کښې سنت دی - او په حالت دَ پاکوالی کښې مستحب یعنې غوره۔

مسئله[3]:- کوم وخت چه وینه دَ فرج داخل نه یعنې دننه سوری نه فرج خارج ته یعنې باهرنی سوری ته راوځی - حکم دَ حیض به پے لږی - برابره خبره ده چه دَ فرج خارج نه دفق وی - او که لا نه - نو که ښځې دَ نیستی په اول سر کښې څه مالوچ وغیره په فرج داخل کښې کیخودل - او په دے وجه وینه فرج خارج ته رانه وته - نو حکم دَ حیض به پے نه لږی - هاں که دَ فرج داخل نه باهر دغه مالوچ ته دَ وینے داغ راورسیدیا ئے دغه مالوچ باهر را وخکل او وینه پے وه - نو حکم دَ حیض به پے ولګی -

مسئله[4]:- پاکه ښځه وه - دَ شپے ئے په فرج داخل کښې مالوچ وغیره کیخودل سحرئے په ښځې دَ حیض وینه ولیده - نو کوم وخت چه ئے دا وینه ولیده - دَ دغه وخت نه به ئے حیض حسابیږی - او که زړوکی ئے کیدل - او دَ شپے ئے مالوچ کیخودل - او سحر ئے په ښځې پاکوالے ولیده - نو دَ پاکوالی حکم به دَ اوده کیدلو دَ وخت نه کیږی - نو که دَ ماسخوتن

---

[1] درمختار و شامی ۱۲ [2] شامی ۱۲ [3] ردالمختار ۱۲ [4] بحرالرائق ۱۲

مونځ ئے نه وُ کړے۔ او په دا سے وخت کښں اُوده شوے وه۔ چه وخت دَ ماسختن لاپاتے وُ۔ نو دَ ماسختن مونځ را ګرځول پۀ په دوا رو صورتونوکښں شته۔

**مسئله** :- په ښځو باندے دَ حیض په حالت کښں مونځ اودس نشته۔ بلکه صحیح هم نه دے۔ لیکن غوره خبره داده چه دَ هر مانځۀ په وخت دے اودس کوی۔ او څو مره ساعت چه بوئے په مانځۀ لګیدے۔ دومره ساعت به په مصلیٰ کینی۔ خدائے دِ یاده وی۔ دَ پاره دَ دے چه دَ مانځۀ عادت ئے هیر نه شی۔

**فائده** :- دَ حیض اودَ نفاس څه احکام په دے کتاب کښں دوړے اودَ لوئے بے اودسئے په احکامو کښں مینه هم بیان شوی دی۔

**مسئله** :- دَ بچی پیدا کیدلو نه پس کومه معروفه وینه چه په | دنفاس بیان
څلو ییښتے کښں دَ ښځے نه ځی۔ ښځے نه نفاس ویلے شی۔ دَ نفاس موده زیات نه زیات څلوییښت ورزے دی۔ اودَ کمے مُودے ئے څه خاص حد نشته۔ که یو ساعت قدرے وینه لا په نودا هم نفاس دے۔

**مسئله** :- که بچے دَ نیم نه زیات راوتے وُ۔ یا نیم راوتے وُ۔ اونیم نه۔ په دا سے وخت کښں ورله وینه راغله۔ دا هم دَ نفاس ده۔ نو مونځ اودس پے نشته۔ لیکن که بچے دَ نیمے نه کم راوتے وُ۔ او په دا سے حالت کښں ورله وینه راغله۔ دا دَ استحاضه ده. نوکه دَ مانځۀ وخت وُ۔ اودَ دے هوش په ځائے وُ۔ مونځ دِ نه قضا کوی۔ اودس دے دکی۔ اوکه اودس ئے نشه کو ے۔ تیمم دے وکی۔ مونځ دے اداکی۔ علما نوئے دا طریقه خوښه ده۔ چه دَ ښځے دَ لاندے دے کټوئے وغیره کیخودے شی۔ یا دے ورله دوغاړکښتلے شی۔ دَ پاره دَ دے چه بچی ته تکلیف وُنه رسی۔ نو په ناسته دے سره دَ رکوع اودَ سجدے مونځ دکی۔ اوکه دَ رکوع اودَ سجدے قدرت ئے نه لاره۔ په اشاره دے مونځ دکی۔ خو قضا کوی دے نه۔ که قضا ئے که۔ نو ګنهګاره به شی۔ لیکن که دبچی ضائع کیدے یا دَ نقصان ویره وه۔ بیا ترک کولے شی۔ چه پاکه شی قضا بدے راوړی۔

**مسئله** :- دَ بچی دَ پیدا کیدلو نه وروستو که وینه نه وی راغلے۔ هم پے غسل دَ نفاس شته۔

**مسئله** :- که حمل اوغورزید۔ نوکه یو یا نیم اندام ئے دغ شوے وُ لکه ګوته۔ نوک ویښته۔ وغیره۔ نو دَ حمل غورزیدلو نه پس چه ورله کومه وینه

ك عالمګیری ۱۲ ك درالمنتقی ۱۲ ك شرح التنویر ۱۲ ك مراقی الفلاح ۱۲ شه درمختار ۱۲ ك عالمګیری ودشرح التنویر ۱۲

راشي - هغه به دَ نفاس وي - او که څه اندام ئې بالکل نه وُو رغ شوے - نو دَ دغه ښځے
وینه دَ نفاس نه ده - نو که دغه وینه حیض کیدے شوه - یعنې کم نه کم درے ورځے
ده - او کم نه کم بیا پنځلس وُرځے پاکه هم وه - نو دا وینه به دَ حیض وي - او که دا ئے
نه وه - استحاضه به وي -

**مسئله**[۱] :- که وینه دَ څلویښت ورځو نه زیاته شوه - نو که دا ئے دَ بچي راوړلو
اول وار وَ - څلویښت ورځے به ئے دَ نفاس وي - او زیاتے دَ استحاضے - نو چه څلویښت
وُرځے پوره شي - دینځ وُدریدلو ته دے صبر نه کوي - وُدے لامبي او مونځ دے کوي -
او که لمبل ورله بد وي - تیمم دِ وُکي - او که دا ئے اول وار نه وَ - بلکه دَ دے نه مینه ئے هم
بچے شوے وُ - نو څومره وُرځے چه دَ دے عادت دَ - هغه نفاس دے - باقي استحاضه
ده - نو دَ عادت نه چه ئے دَ څلویښتے دَ ونو پورے څومره وُرځے زیاتے شوي وي - دَ هغه
ورځو مونځونه پے شته -

**مسئله**[۲] :- فرض که چه دَ یوے ښځې عادت دَ نفاس پنځه ویشت ورځے دَ -
وس ئے پنځه ویشت وُرځے پوره شوے - لیکن وینه بنده نشوه - نو او به دِ هم په ځان
نه اچوي - که څلویښت وُرځے ئے پوره شوے او وینه وُدریده - مونځ به وایي - چه دا
ټول نفاس دے - او عادت ئے بدل شه - وُس دے وُلامبي - او دَ تیرو شوو څلویښتو
ورځو مونځونه پے نشته - او که وینه دَ څلویښتو وُرځو نه هم زیاته شوه - نو وس دَ ولامبي
پنځه ویشت ورځے ئے دَ نفاس وے - دَ هغے مونځونه پے نشته - او نورے دَ استحاضے
وے - دَ هغے مونځونه پے شته - قضا به ئے راوړي -

**مسئله** :- فرض که چه عادت ئے پنځه ویشت ورځے دَ نفاس وُ - او وس پنځه ویشت
وُرځے پوره شوے - لیکن وینه و نه دریده - نو او به دے هم په ځان نه اچوي - که
وینه دَ څلویښتو ورځو نه مینه بنده شوه - مثلاً په دیرشمه ورځه بنده شوه - وس دَ
ولامبي - او دَ تیر شوو دیرش وُرځو مونځونه پے نشته - مونځ به وایي
چه عادت ئے بدل شوے دے - ګڼو به ئے نفاس پنځه ویشت وُرځے وُ - دُس دیرش
دے -

**مسئله** :- دَ نفاس وینه که دَ څلویښتو ورځو نه اول اول بنده شوه - نو دَ
وینے بندیدلو نه پس دے وُلامبي - او مونځ دے کوي - قضا کوي دے نه - او که لمبل ورله

---

[۱] درمختار و شامي ۱۲ [۲] شرح التنویر و ردالمحتار ۱۲

نقصانی وی تیمم دے وکی۔

**مسئله** ۱:- که په شلو ورځو کښې دننه دننه څه ورځې پاکی ولیده۔ او په اول او آخر کښې ئے وینه وه۔ نو د امام صاحبؒ په نزد دغه پاکوالی هیڅ اعتبار نشته دغه به هم په نفاس کښې حساب وی۔ برابره خبره ده چه دغه پاکی پنځلس ورځے وی۔ او که کمه وی۔ او که زیاته۔ لکه دَ مچې پیدا کیدو نه پس ورله په اوله ورځ وینه راغله بیا اته دیرش ورځے پاکه وه۔ بیا په څلویښتمه ورځ ورله هم وینه راغله نو نفاس به ئے پوره څلویښت ورځے حسابیږی۔

**مسئله** ۲:- دَ نفاس او دَ حیض په مینځ کښې دَ پاکوالی موده کم از کم پنځلس ورځے ده۔ څو هله چه دا پاکوالے هغه پاکوالے نه وی۔ دکوم بیان چه په تخکنئ مسئله کښې تیر شه۔

**مسئله** ۳:- دَ دوه نفاسونو په مینځ کښې دَ پاکوالی موده کم نه کم شپږ میاشتے ده۔

**مسئله** ۴:- که په شپږ میاشتے کښې دننه دننه پرله پسے دوه بچي وشو نو دا هله به یو گڼلے شی۔ نفاس ئے یو دے۔ نو دَ نفاس موده به دَ اول بچي نه شروع کیږی۔ دَ دویم بچي پیدا کیدو نه ورستو که ئے وینه ولیده۔ نو که دا اول بچي څلویښتی لا نه وی وتی۔ دا وینه به دَ هغه نفاس وی۔ او که وتی وی نو دا وینه دَ استحاضے ده۔

**مسئله** ۵:- دَ نفاس په حالت کښې مونځ کول او روژه نیول صحیح نه دی۔ دَ نفاس دَ دغه ورځو شپو مونځ ورته بالکل معاف دے۔ او دَ روژو قضا به راوړی۔ دارنګ دَ مانځه او دَ روژے او دَ جماع وغیره کوم احکام چه په احکامو دَ حیض کښې بیان شوی دی۔ هغه احکام دَ نفاس هم دی۔

| دَ استحاضے احکام | په مانځه او دا سے کښې دَ استحاضے احکام هغه دی۔ کوم چه دَ |
|---|---|

معذورو په بیان کښې مینه لیکلی شوی دی۔ دا سے ښځه به مونځ او دس کوی۔ او روژه به هم نیسی۔ او دَ خاوند صحبت ورسره هم جائز دے۔

| دَ حقیقی نجاست نه دَ پاکوالی بیان | نجاست پلیتئ ته وائی۔ او پلیتی په دوه قسمه ده۔ یوه |
|---|---|

له شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ ۲ه درمختار ورد المحتار و بحر ۱۲ ۳ه بحر و شامی ۱۲ ۴ه یعنے دَ اول او آخر پیدا کیدو نه پس لا شپږ میاشتے نه وے پوره او دویم وشه ۱۲ ۵ه شرح التنویر ۱۲ ۶ه درمختار ۱۲ ۷ه شرح التنویر وکبیری ورد المحتار ۱۲

حکمی ده - بله حقیقي - حکمی هغه ده - چه په سترګو نه ښکاري - خو صرف شریعت پې حکم کړے وي - لکه دړه بے اودسی اولویه بے اودسی - دپاسه نه حدث اصغر ویلے شي اولوئے ته حدثِ اکبر - په کوم سبب چه اودس ماتیږي - په هغے سره حدثِ اصغر راځي - او په کوم سبب چه غسل فرض کیږي - په هغے سره حدثِ اکبر راځي - دَ حدثِ اصغر لرے کولو دَ پاره اودس او دَ حدثِ اکبر لرے کولو دَ پاره غسل دے - او که دَ اوبو استعمالولو قدرت ئے نه وَ - نو بیا تیمم - لکه چه مینه په تفصیل سره تیر شوی دی - او حقیقي پلیتي هغه ده چه په نظر راځي - لکه غل متیازے وغیره - بیا حقیقي پلیتي هم په دوه قسمه ده - یوه غلیظه ده - بله خفیفه - دَ نجاستِ غلیظه پلیتو الے سخت وي - او دَ خفیفه پلیتو الے سپک -

**مسئله**[1] :- کوم نجاست چه دَ انسان دَ بدن نه اوځي - او او دس پے ماتیږي - لکه واړه بول - لوئے بول - دَ خلا ځائے نه بهیدونکے وینه - زوه - وغیره وغیره - دا ټول نجاست غلیظه دي - داړنګ شراب - مرداره غوښه - دَ سپي غل او متیازے - دَ بدلیو غوښه - او دَ هغه وېښته او اډوکے - بلکه دَ هغه هرڅه - دَ آس او دَ خره او دَ قچر خرښنه - دَ غوا میښے غوشایه - دَ او ښانو او دَ ګډے بېزے پچے - غرض دا چه غل دَ هر ښکاروي - برابره خبره ده چه غوښه ئے حلاله وي او که حرامه - ځیرګے او دَ بطخے او دَ مرغابۍ وغیره غل - دَ خره او دَ قچر متیازے - دا ټول نجاستِ غلیظه دي - او وینه هم نجاستِ غلیظه ده - لیکن دَ شهید وینه - دَ کومے پورے چه په شهید وي پاکه ده - داړنګ دَ مذبوحه حیوان په رګونو کښي چه پاتے شوے وي - او دَ غوښو پریکولو په وخت کښي چه دَ غوښے وینه په لاس وغیره لګی هغه نجسه نه ده - او دَ مچي او دَ سپږے او دَ وړکے او دَ ماشی وینه هم نه ده نجسه - او نه بهیدونکے وینه هم نجسه نه ده - لکه چه مینه ذکر شوی دی - لیکن صفائی ئے ښه ګڼل ده - او دَ ایځے او دَ توری وینه پاکه ده -

**مسئله**[2] :- کوم بچي چه تے ورودونکے وي - دَ هغه غل متیازے هم نجاستِ غلیظه دي -

**مسئله**[3] :- دَ پیشو غل او متیازے هم نجاست غلیظه دي - لیکن ځینے عالمان وائي چه دَ پیشو متیازے که دَ اوبو دَ لوښي نه علاوه په بل څه شي لکه په زړوکي وغیره ولګیدے - نو دا دَ ضرورت په وجه معاف دي - خو اول قول ظاهر الروایت دے - او هم

---

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] درمختار ۱۲ [3] شامی ۱۲

د احتیاط خبره ده -

مسئله :- کوم مرغئ چه حرام دی - د هغوی غل - او کوم څاروی چه حلال دی د هغو متیازې او دا رنګ د اسپ متیازې - دا ټول نجاست خفیفه دی -

مسئله :- کوم مرغئ چه حلال دی - د هغوی غل - او دا رنګ د ښاپیرک متیازې او غل پاک دی - او ځینې عالمان وائی چه د ښاپیرک غل او متیازې دی نو نجسې لیکن د ضرورت په وجه یې حکم د پاکوالی شوے دے -

مسئله :- د نجاست غلیظه کوم قسم چه نری یا او بهیدونکے وی - لکه د سړی متیازې وغیره - دا قسم نجاست غلیظه که په بدن یا په کپړې وغیره ولګیده نو که خوره ولے یې د یوے شرعی روپئ همره وی - یعنی د درغوئ د جوړوالی همره وی - یا د دے نه کم وی - او مونځ یې ورسره وکه - نو دا دومره پلیتی معاف ده - یعنی مونځ یې وشه مونځ ورسره کیږی - خو ودے ایښی - هسے دے نه پریږدی -

که معلومه وه او د اینځلو قدرت یې وو - او وه د روپئ همره - نو اینځل یې واجب دی - که مونځ یې ورسره وکه - نو اعاده یې واجب ده - بیا به دغه مونځ کوی -

او که کمه وه نو اینځل یې مسنون دی - خو په دے تفصیل کښی اختلاف شته -

او که د دے نه زیاته وه نو اینځل یې فرض دی - مونځ ورسره نه کیږی -

او که د نجاست غلیظه هغه قسم په بدن یا په کپړې وغیره ولګیده - چه کوم قسم ټینګ وی - لکه غل یا غوشایه وغیره - نو که دا په وزن کښې د یوے شرعی روپئ همره وی - یعنی څلور نیم (۴½) ماشے وی - یا د دے نه یې وزن کم وی - مثلاً څلور ماشے ده - یا یو ماشه وی - نو دغه همره نجاست غلیظه معاف دے -

او که د دے نه یعنی د دے څلور نیم ماشو نه د دغه نجاست غلیظه وزن زیات وی - مثلاً پنځه - شپږ - اوه ماشے وی - نو بیا معاف نه دے - اینځل به یې ضرور - او که دی نه اینځلو او مونځ یې ورسره اوکړو - نو دا مونځ یې ورسره اونه شو - قضا به یې راوړی -

مسئله :- د درغوی د جوړوالی نه مراد صرف د درغوے دے - او د دے مقدار معلومولو بله طریقه داده - چه سړے په چونګ کښې اوبه راواخلی - بیا

---

له بحر رائق ۱۲ ۲ه بحر رائق ۱۲ ۳ه یعنی الوزنک ۱۲ ۴ه خصیا اګکه نه اچوی بلکه یې راوړی - ازیے ورله ...
۵ه درد شامی د بحر رائق ۱۲ ۶ه د درهم کوم مقدار چه په زکوٰة کښې معتبر دے هغه د دے نه غیر دے
۷ه ملا مسکین ۱۲

کوتے اوکړے کړی۔ نو څومره اوبه چه په ورغوی کښې پاتے شی۔ بس دغه مقدار د ورغوی د جوړوالی دے۔

**مسئله**[1] :- که نجاست خفیفه په بدن یا په زړوکی ولګیږه۔ نو په کوم ځائے چه لګیدلے وی که هغه نجاست د دغے حصے د څلورمے برخے نه کم وی۔ مونځ ورسره کیدے شی معاف دے۔ اوکه پوره څلورمه حصه وی۔ یا د دے نه زیات وی۔ نو نشی کیدے۔ معاف نه دے۔ مطلب[2] دا دے چه مثلاً که په جامه کښې په لستوڼړی لګیدلے وی۔ د لستوڼړی څلورمے حصے ته به ګورو۔ اوکه په لمن لګیدلے وی۔ نو د لمنے۔ اوکه په ترینګی لګیدلے وی۔ نو د ترینګی۔ او دارنګ که مثلاً په بدن کښې په لاس لګیدلے وی۔ نو د لاس څلورمے ته به ګورو۔ اوکه په خپه نو د خپے۔ غرض دا دے چه څلورمه برخه د هغه خاصے حصے معتبره ده۔

**مسئله**[3] :- که په اوبو کښې یا په بل داسے څیز کښې نجاست غلیظه ولویږی۔ نو دغه اوبه وغیره به هم نجس غلیظ شی۔ اوکه نجاست خفیفه پکښې ولویږی۔ نجس خفیف به شی۔ په دے کښې د روپئ او د څلورمے برخے د مقدار اعتبار نشته۔ هاں که دغه اوبه بیا په بدن یا په زړوکی ولګیږی۔ نوکه نجاست غلیظه وی۔ د روپئ د مقدار اعتبار به کیږی اوکه خفیفه وی۔ نو په کومه حصه چه لګیدلے وی۔ د هغے د څلورمے حصے اعتبار به کیږی۔

**مسئله**[4] :- که د زړوکی په څه ځائے تیل ولګیږه۔ او هغه وو نجس غلیظ۔ او د لګیدو په وخت کښې ئے خوروالے د یوے شرعی روپئ همره وی۔ خو بیا د مانځه په وخت کښې ئے ځائے وپیروښو۔ یعنے خوروالے ئے د روپئ نه زیات شه۔ نو اے د لګیدو په وخت کښې چه ئے کوم مقدار وی۔ اعتبار به د هغه مقدار کیږی۔ اوکه د مانځه په وخت کښې چه ئے څومره مقدار دے۔ اعتبار به د دے کیږی۔ نو څینے عالمانو د لګیدو حالت نه هم کتلی دی لیکن غوره او د احتیاط خبره دا ده۔ چه د مانځه په وخت کښې چه ئے څومره مقدار دے د هغے اعتبار به کیږی۔ نوکه خوروالے ئے د شرعی روپئ نه زیات شوے وی۔ مونځ ورسره صحیح نه دے۔ اوکه نه وی۔ معاف دے۔

**مسئله**[5] :- که د زړوکی یا د بدن په یو ځائے باندے نجاست خفیفه او غلیظه دواړه ولګیږه۔ مثلاً د بیزے او د سړی متیازے په شریکه ولګیدے۔ نو وس به دا نجاست نجاست غلیظه ګڼلے شی۔ نوکه خوروالے ئے د روپئ نه زیات وی۔ معاف نه دے۔

---

[1] بحر الرائق و حقایق ۱۲ [2] او نور اقوال پکښې هم شته ۱۲ [3] در مختار و شامی ۱۲ [4] رد المحتار ۱۲ [5] در مختار و شامی ۱۲

اوکه د ټوکرۍ یا د بدن په یو ځائے نجاست غلیظه لګیدلے وی۔ او په بل ځائے نجاست خفیفه
او هر یو د هغه مقدار نه کم وی۔ چه کوم معاف دے۔ نو دا دواړه نجاستونه به جمع کړے شی۔
پس که غلیظه زیات وی د خفیفه نه۔ یا دواړه برابر وی۔ نو ټول نجاست به غلیظه وګڼړلے شی۔
نو که د درهم د مقدار نه زیات دے دواړو مجموعه مقدار زیاتیږی۔ معاف نه دے۔ مونځ ورسره
نه کیږی۔ او که خفیفه زیات وی د غلیظه نه۔ نو دغه نجاست به ټول خفیفه وګڼړلے شی۔
نو که د هغه جمے د څلورمے برخے همره وی۔ معاف نه دے۔

**مسئله**[1]:- که پلیتی ولګیدلو په وخت کښې د درهم د مقدار نه زیاته وه۔ او
پس د وچیدلو نه کمه شوه۔ نو د دے کموالی اعتبار نشته۔ اینځل ئے ضروری دی۔

**مسئله**[2]:- که د یو ټوکرۍ په څه حصه پلیتی ولګیده۔ او بیا مخے ته ئے او وته
او د یو ے غاړے پلیتی ئے هغه مقدار وه۔ چه څومره مقدار معاف وی۔ لیکن د دواړو
مجموعه مقدار د دیے زیاتیده۔ نو د هغه بل خوا اعتبار به نه کیږی۔ هاں که څوکے برعکس د
اوګڼړلے شوے وی۔ او پلیتی د یو نه هغه بل ته هم رسیدلے وه۔ نو د امام محمد صاحبؒ
په نزد به اعتبار کیږی۔ او د امام ابو یوسف صاحبؒ په نزد نه۔ آسانی د امام ابو یوسفؒ
صاحب په قول کښې ده۔ او احتیاط د امام محمد صاحبؒ په قول کښې دے۔ او څینے
عالمانو دا فیصله کړے۔ چه که دواړه د یو بل سره داسے ګنډلی شوی وی۔ چه وس قول یو
ګرځیدلے وی۔ نو د امام ابو یوسف صاحبؒ په قول به عمل کیږی۔ او که داسے نه وی۔ بیا
به د امام محمد صاحبؒ قول اخلو۔

**فائده**[3]:- حقیقی پلیتی په دوه قسمه ده۔ یوه هغه ده چه جسم لرونکی وی۔ او بله
هغه ده۔ چه جسم لرونکی نه وی۔ د جسم لرونکی نه مراد دا دے چه پس د وچیدلو نه به
نظر راځی۔ لکه غل۔ وینه وغیره۔ او د جسم نه لرونکی نه مراد دا دے چه پس د وچیدلو
نه په نظر نه راځی۔ لکه متیازے وغیره۔

**مسئله**[3]:- د څرمنو په موزو یا په پڼو یا په بوټانو وغیره که جسم لرونکی پلیتی
ولګیده او وچه شوه۔ لکه وینه۔ غل۔ منی۔ غوشایه وغیره۔ نو چه په زمکه ئے ښه راکاږی
چه اثر د نجاست لاړ شی۔ په دے سره هم پاک کیږی۔ دارنګ که په لوټه یا په لرګی
وغیره ئے هغه ځائے وسره وګراوی چه د پلیتی اثر بالکل لاړ شی په دے سره هم پاک کیږی
او که دا پلیتی لا وچه شوے نه وه۔ په هغه شی ئے را خکوله۔ چه ورسره ئے نجاسته لاړ نشوه۔ نو

---

[1] رد المحتار ۱۲ [2] زیلعی ۱۲ [3] ملتقی الابحر و مجمع الانهر ۱۲

هم پاک شو. او که د څرمنې په موزه یا په پیزار وغیره داسې پلیتي ولګیده. چه هغه جسم
لرونکې نه وه. بلکه بهیدونکې وه. لکه متیازې وغیره. نو هغه په مګلو سره نه پاکیږي.
اینځل ئې ضروري دي. یو ځل دې دا اینځي. او دومره ساعت دې پریږدي. چه بیا ئې اوبه
نه څاڅي. بیا دې را واخلي. بیا دې وا ینځي. بیا دې کیږدي. غرض دا چه دریم ځل ئې
په دې طریقه وینځي. نو پاکه به شي.

**مسئله**[4]: کوم شئ چه صیقل وي. لکه آئینه نوک. د اړوکي څه شئ. د سرو یا د
سپینو زرو کالي. د وسپنې د تانبې د پیتلو وغیره څه شئ. چینې لوښي وغیره. که په
داسې شیئ څه پلیتي ولګیده. نو چه په خاورو یا په څه شي ئې اومږي. چه اثر ئې لاړ
شي. په دې سره هم پاکیږي. خو بیا بنه دا ده چه پلیتي که وچه وه. او جسم لرونکې وه.
و دې کروي. او لمده چیرو دې په را کاږي. د پاره د دې چه د پلیتئ اثر بالکل لاړ
شي. او که وچه وه. او جسم لرونکې نه وه. لکه متیازې په ګکیدلې او وچې شوې وې نو
په لمده چیره دې بنه پاک کي. او که پلیتي لمده وه. نو که څه شئ ئې په بنه را خکوو
چه اثر ئې لاړ. نو پوره ده. خو بهرحال اینځل غوره دي. او که نقش و نګار پکښې وي.
یا زنګ بیا به ئې اینځي.

**مسئله**[5]: که پلیتي داسې وه. چه څو ځله ئې وینځله. لیکن بیا ئې هم بوئ
یا داغ پاتې شه. نو هم ذړوکه پاک شه. په صابون یا په بل شي ئې بوئ یا داغ لرې
کول ضروري نه دي. او که لرې ئې که نو ډیره بنه ده.

**مسئله**[6]: که پلیتي جسم لرونکې نه وه. نو متیازې وغیره. او په ذړوکي ولګیده
نو درې ځله دې وا ینځي. او په هر ځل دې نچوړکي. او په دریم ځل دې په خپل پوره طاقت
سره نچوړکي. چه بیا ئې قطرې په نچوړولو سره نه څاڅي. نو وشوه. خو زور د هر چا
خپل معتبر دې. نو که زید په خپل پوره زور نچوړکه. او دس داسې و. چه که بکر
ئې نچوړوي. او به به ترې وڅاڅي. نو هم خیر دې. د زید د پاره پاک شه.

**مسئله**[7]: که نجاست حقیقي ئې په اوبه و نه اینځه. بلکه د اوبو په شان ئې
په بل داسې بهروب شي وا ینځه. چه پاکوالې په را ته. لکه عرق ګلاب یا سرکه وغیره.
نو په دې سره هم پاک کیږي. خو به ضرور نه په اینځل نه دي پکار. او په کوم شي کښې چه

[1] درمختار و شامي ۱۲ [2] درمختار ۱۲ [3] مراقی الفلاح ۱۲ [4] په اصل کښې اینځل د هغې نورې پکار
دي. چه د سړي غالب ګمان نه راشي چه دس پاک شه. خو فقهاو درې ځله ځکه دائي چه غالباً په دې سره
پاکوالې راځي. او په دې کښې دفعه د وسوسې ده ۱۲ منه [5] شرح التنویر ۱۲ [6] منیه و کبیري ۱۲

غوړوالے وی ـ لکه پیه ـ تیل ـ غوړی ـ وغیره ـ په دے سره اینځل جایز نه دی ـ پاکوالے په نه راځی ـ

مسئله[1] :ـ دا چه شے نجس شه چه هغه نچوړیدے نه شی ـ لکه تخته انځیرے ـ قالین ـ د څرمنے مصلٰی ـ یا بل دا سے شے ـ نو د هغے حکم دا دے ـ چه یو ځل دے ووینځی ـ بیا دے کیږدی ـ چه اوبه څڅیده تے بند شی ـ بیا دے ووینځی ـ او بیا دے پریږدی ـ چه درے ځله ورسره دا چل وکی پاک به شی ـ

مسئله[2] :ـ مثلاً که غنم درے ناپاکه شوه ـ هغه دیوه شپه په جاری اوبو کښی پریږده ـ چه اوبه پرے بهه اوبهیږی ـ نو په دے سره هم پاکه شوه ـ

مسئله[3] :ـ که د کودرو لوښے نجس شه ـ او د ډیرو ورځو نه په استعمال کښی و ـ نو په درے ځله اینځلو سره به پاک شی ـ او که لوښے او سپیره و ـ هغه به پاکیږی چه درے ځله ووینځی او په هر ځل ئے کیږدی ـ چه اوبه تے و څاڅی ـ لکه په تیره شوی مسئله کښی چه بیان شو ـ

مسئله[4] :ـ که په ځمکه پلیتی ولګیده ـ بیا هغه ځائے د غرمی یا د ورباد هوا په وجه داسے وچ شه چه د پلیتئ نخه پاتے نشوه ـ نه ئے رنګ و نه بوئ ـ نو دس د ځمکه پاکه شوه ـ مونځ پیئے جائز دے خو تیمم پیئے جائز نه دے ـ او که خښتے یا کټه په چونه یا په سیمټو وغیره د ځمکے سره داسے کلکے کړے شوے وے چه دس تے بے کنستلو نه جدا کیدے ـ او د یو ځائے نه بل ته وړے راوړے کیدے نه ـ یا فرش د سیمټو وغیره و ـ نو د هغے هم داسے حکم دے لکه د ځمکے ـ

مسئله[5] :ـ کومه خښته چه په ځمکه هسے پرته وی ـ او په فرش کښی لګولی شوی نه وی ـ که په هغے نجاست ولګیده ـ نو هغه په وچیدلو سره نه پاکیږی ـ اینځل ئے ضروری دی ـ نو که درے ځله ئے واینځله ـ او هر وارئے پریږده ـ چه قطرے څڅیدل تے بند شو ـ نو ظاهری حصه ئے پاکه شوه ـ مونځ پیه کیږی ـ

مسئله[6] :ـ که ځمکه په ناپاکو اوبو لمده وه ـ او په هغے ئے وچ پاکه ځړیکے وغوړاوه او ځړیکی نه د هغے نم خو ورسید ـ لیکن دومره نه وه چه په نچوړولو سره به تے و څاڅی

---

[1] ملتقی وشرحه ۱۲ [2] قاضی خان ۱۲ [3] او بعضے عالمان وائی چه دا حکم هغه دے ـ چه د نجاست لګیدلو په وخت کښی د غه لوښے لوند وی ـ او که وچ ـ او سپیره و ـ نو حکم ئے په شان د نوی دے ـ منیه وکبیری ۱۲ [4] فتح القدیر ۱۲ [5] منیه وغنیه ۱۲ [6] منیه وغنیه ۱۲

نو په دے سره نه پلیتیږی - پاک دے - او دارنګه که لوند پاک زړوکے یے په پووڅ ناپاک ځائے وغوړاوے - او هغه ځائے ته د زړوکی نمی ورسیږه - لیکن په زړوکی ئے د پلیتئے څه اثر رانغے - نو په دے سره زړوکے نه بیلمازه کیږی -

مسئله[1] :- فرض که - چه دوه زړوکی دی - یو پاکه او وچ دے - بل ناپاک دے په او بو لوند شوے وو - سره په ونګښد - لوندوالے په وچ کښی ونښت - یا ئے ورسره هیسے یو ځائے کیخود - نو په پاک زړوکی کښی د هغے نه څه لوندوالے خورانغے - لیکن د پلیتئے څه رنګ یا بوئے پکښی معلوم نشه - نو که د ناپاک زړوکے دومره لوند شوے وی چه په نچوړو سره به ئے او به لاړے شی - یا به ئے قطرے دوه وڅاڅی - نو ناپاکه زړوکے هم بیلمازه شه - او که دومره نه وی لوند شوے - نو پاک دے - او که په دے مسئله کښی دا دویم زړوکے په متیازو یا په بل داسے نجاست لوند وی - نو که د دیم پاک زړوکی ته لوندوالے قدرے ورسید هم به بیلمازه شی -

مسئله[2] :- که او دس ئے کړے وو - بیائے لمدے څپے په ناپاکه زمکه کیخودے - په زمکه ئے د څپو څه نخه وشوه خو هغه خاورے پښے ونه لګیدے - او په څپوئے څه اثر د پلیتئے ښکاره نه شه - نو په دے سره پښے نه بیلمازه کیږی -

مسئله[3] :- که په ناپاکه بچونړه څوک اوده شه - او داسے خولے شه - چه بچونړے ته ئے لوندوالے ورسید - نو صرف په دے قدر سره بدن او جامه نه بیلمازه کیږی هاں که د خولو په وجه ئے بچونړه دومره لمده شوه چه بیا د بچونړے لوندوالے د ده په بدن یا په جامه ولګید - نو بیلمازه به شی -

مسئله[4] :- په کوم ځائے چه ئے ښکلی لګولے - که په هغه ځائے یا په بل داسے ځائے چه په وینه یا په نو ښماؤ - لمده چیرږه درے پیرے را خکودله - او هغه ځائے ئے پاک که - نو هم پاک شه -

مسئله[5] ،- د چاپه کونه یا په څه ځائے پلیتی لګیدلے وه - او دے بے شرمه ولګید - هغه ئے درے پیرے بنده وڅټله - نو کونه ئے پاکه شوه - خو داسے کول منع دی - او که نچی ئے روده - مثلاً - او په هغے ئے وجار لیښتل - بیائے هغه درودو - او کم از کم یو ئی ځله ئے وڅویه - نو په دے سره هم پاک شه -

مسئله[6] :- که په چوړکئے وینه لګیدلے وه - یا د حلالے شوے بیزے سر په وینو

---

[1] منیه وغنیه ۱۲ [2] غنیه ۱۲ [3] منیه وکبیری ۱۲ [4] عالمګیری ۱۲ [5] درود ۱۲ [6] منیه وغنیه ۱۲

سخا شوے وُ - اورته ئے او څور ځاوُ - چه وینه ئے ښه وسوه - نو پاک شه - دا رنګ که دَ خاورو یا دَ و سپینو یا دَ تانبے وغیره ناپاک لوښے یا څه شے پهٔ اور کښې کیخود - چه دَ پلیتئ اثر ئے لاړ - نو پهٔ دے سره هم پاکو اېله راځی -

**مسئله**[1] :- که پهٔ تنور کښې پلیتی دارے وګیدے - یا وروکی پکښې متیازے وکړے - یا پکښې پلیته لمده چیوړه راځکو دے شوه مثلاً - نو پهٔ ځغ کښې چه اور بل کړے شه - او پهٔ اور سره ئے اثر دَ نجاست لاړ - داپوره ده - پاک شه -

**مسئله**[2] :- که اوبه او خاورے لهٔ سره ګډے شوے - او پهٔ دے دواړو کښې یو ناپاک وُ - نو صحیح خبره داده چه دغه خټه ناپاکه ده -

**مسئله**[3] :- که خټه ناپاکه وه - او دَ هغے نه ئے منګے یا کوزه یا کټوی یا بل څه شے جوړ که - او پهٔ اور ئے سور که - چه دَ پلیتئ اثر ئے اووت - نو پاک شه -

**مسئله**[4] :- که تیل ناپاک شوی وُ - او هغه ئے پهٔ سر کښې واچول - یا ئے پهٔ څه ځائے موږکه - یا ناپاک غوړی وُو - پهٔ ځغ کښې ئے کوته ځکته کړه - یا داپه څه زړوکی وګکیدل نو چه دَ قاعدے سره مطابق ئے ورته ځله واینځی پاک شه - که دَ غوړوالی څه اثر پاتے وی خبره ده - پهٔ صابون اینځل او دَ غوړوالی اثر لرے کول نهٔ دی واجب -

**مسئله**[5] :- که تیل ناپاک شوی وُ - او پهٔ ځغ کښې ئے صابون جوړ که - نو کوم تیل چه پهٔ صابون کښې وګیده هغه پاک شو -

**مسئله**[6] :- که پهٔ ناپاکه ذګریزه ئے لاسونه سره کړه - یا ئے پهٔ څه ځائے وګکوله یا رنګ ناپاک شوے وُ - زړوکی له ئے ورکه - نو که ورته ځله ئے باقاعده وینځه - پاک شه - اګرکه رنګ ئے نه وی تلے - دومره اینځل پکار دی - چه اوبه ئے رنړے وځاځی -

**مسئله**[7] :- غل یا غوشایه وغیره چه وُسوزئ او ایره شی - دغه ایره پلیته نهٔ ده - که موږ ئے په وکه - وشه -

**مسئله**[8] :- که بدلیوه یا خر یا بیې یا بل داسے حیوان دَ مالګے کان ته ولویږی - او هغه مالګه شو - نو دغه مالګه ناپاکه نهٔ ده - خوړل ئے جائز دی - ځکه چه دَ هغه حقیقت بدل شه - خو دَ بعضو اختلاف پکښې شته -

---

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] قاضیخان وشرح منیه ۱۲ [3] درود ۱۲ [4] منیه ۱۲ [5] شرح التنویر ۱۲ [6] درود ۱۲ [7] شرح المنیه ۱۲

**مسئله**:- که واخه دلاړو - او پلیتي په رنګیدلو - نو چه ویچ شي - اثر د پلیتئ ئے لا پرشي پاک شو - او که پرے کپړے شوي وي - نو په دے سره د پاکیږي - اینکل ئے ضروري دي -

**مسئله**:- که په زړکي یا په بدن کښي څه ځائے بیلمازه شه - او هیر ئے شو - چه هغه کوم بروابزو - بیائے په ټپل فکر د هغ ځمره ځائے وینځه - او معلوم وړنه نه وه - چه هغه بیلمازه ځائے واده - او که بل - نو هیڅ دے پاک شه - او ځینو عالمان وائي چه د احتیاط د پاره دے ټوله وینځي - دارنګه که د مالوچو نه بیلمازه شوي ئے - او معلومه وړنه نه وه - چه هغه کوم کوم دي - بیا ئے څه اند وینځه کړله او په دے سره ئے لږ والوتل - نو وس به دے تو روته ناپاک نه وائي - بلکه پاک وئي - خو دومره خبره ده - چه که معلومه وه - چه مثلاً ناپاک مالوچ یو هوټے دے - نو واضروري وه - چه کوم ته الوتي وي - هغه کم نه کم یو هوټه وي - او که معلومه نه وه - نو بیا بله خبره ده - دارنګ که د غومبلولو په وخت کښي غوا نو په دانو باندے متیازے وکړے مثلاً نو څومره داخه چه لس نه شوي دي - که کم نه کم د هغ ځمره دانه ئه وینځل پائے ئے خیرات وکړے پائے ئے خرڅ کړے - پائے پکښي نور تصرف وکړه - مثلاً عشره ئے وا یست - او وس نو پاک شوے - او که داورته نه وه معلومه چه په کوم متیازے لګیدلے وے دغه څومره وے - نو هم په دغه تصرف سره ټولے پاکے شوے -

**مسئله**:- که کښین پایئ ناپاک شي - او د پاکولو طریقه ئے دا ده چه د هغ ځمره او به دے پکښي واچوي - او په اوږدے د لیټوي - چه دغه او به تے ویچ شي - بیا دے ورسره داجل وکي - نو پاک شو - او که تیل یا غوړي یا بل دا ییچ څه ناپاک شه - نو او به دے په کښي واچوي او په اور دے کیږدي - چه هغه وا لیشیږي - او د او نو سره نبه راوخیژي - نو په څه طریقه دے د او بو نه راجدا کي - بیا دے په کښي نورے او به واچوي - چه درے ځله ورسره دا طریقه وکي - نو پاک شو - او په بعضو معتبرو کتابو نو کښي ئے نا وېړي دي - چه د دے پاکولو کښي اینښول او په اور کیښودل شرط نه دي - مثلاً که په تیلو کښي او به واچولے او په اور ئے کے نه خوړه بلکه بیائے هغه د او بو نه په څټ ټول کړه - نو چه درے ځله ورسره دا طریقه وکي - هم به پاک شي -

---

۱ منیه ورد المحتار ۱۲ ۲ درمختار و شامي ۱۲ ۳ عالمګیري و در در و شرح

که غوړي ناکه شوي وو. نو چه اوبه پکښې واچوي. ولې کول یې هم ضروري دي. اوکه ناکه غوړ وته څه پلیتي ولویږي. مثلاً منګک پکښې مړ شه. نو هغه او د هغې څواوښتا ته دے تے اوباسي. باقي پاک دي.

**مسئله**[1]:- که کوهے ناپاک شه. چه وس یې او به راایستل ضروري شوه. او بیا هغه اوبه په کوهي کښې وچې شوے. زمکے راخکودلے. نو پاک شه.

**مسئله**[2]:- په کومو اوبو چه بیلمازه شے اینځلے شوے وي. هغه اوبه ناپاکے دي خو دومره فرق دے. چه مثلاً ناپاک زړوکے چه په اول ځل په کومو اوبو اینځلے شوي دے که په هغه اوبو بل زړوکے بیلمازه شوے وُ. نو دا بل زړوکے به هله پاکیږي چه دے درے ځله واینځلے شي. اوکه دے د اول زړوکي د دویم ځل په اوبو بیلمازه شوے وُ. نو په دوه ځله اینځلو سره به پاکیږي. اوکه د دریم ځل په اوبو بیلمازه شوے وُ. نو په یو ځل اینځلو سره به پاک شي. خو درے ځله اینځل غوره دي.

**مسئله**[3]:- که پلیتي اوبو ته او غوړ ته یوه. او د هغې په وجه د اوبو دارے او چیتے شوے په چا ولګیدے. مثلاً اوبو ته چا غوښان راوغورزول. نو د اوبو دارے د چا په جامه ولګیدے. نو که په جامه باندے د پلیتۍ څه اثر ظاهر شه. بیلمازه شوه. او که نه شه نو نه.

**مسئله**[4]:- که توکے دوه ورو برغ. او یو مانځۍ ور بل بیلمازه. نو که دواړه د یو بل سره ګنډلی شوي وُو. نو ټول به بیلمازه ګڼلے شي. که ناپاکه حصه یې د تنړو یا د سجدے په ځاے را تله نو مونځ پرے جائز نه دے. اوکه ګنډلی شوي نه وُو. نو په هغه بل باندے مونځ جائز دے. ولے هله چه هغه دومره پیړنړه وي. چه د هغې د لاندے د هغه ناپاک زړوکي د نجاست رنګ او بوی نه ظاهریږي.

**مسئله**[5]:- که په زمکه پلیتي وه. او هغه یې وکښته. او په خاورو کښې یې بالکل پټه کړه. چه بوی یې بالکل لاړ شه. نو وس په دغه ځاے مونځ جائز دے. چه تر څو څه پلیتي پرے نه وي.

**مسئله**[6]:- که د لرګي د تختے یو مخ مانځۍ وُ. بل بیلمازه. او وه دومره پیړنړه چه په مینځ آره کیدے شوه. یعنے پاک او ناپاک مخ یې بیلیدے شه. نو په پاک مخ یې مونځ جائز دے. اوکه دومره پیړنړه نه وه. بیایې په پاک مخ هم جائز نه دے. لیکن په بعضے کتابونو کښې یې

---

۱ درود ۱۲ ۲ فتاویٰ هندیه ۱۲ ۳ کبیري وشامي ۱۲ ۴ منیه ۱۲ ۵ کبیري ۱۲ ۶ شامي ۱۲

را وړي دي - حقه خبره داده - چه په پاک نړ ئے موږ جایز دے - په دواړو صورتونو کښ -

**مسئله :-** دَ مشرک دَ لاس حلاله (ذبیحه) حرامه ده - او دَ هغې په لوښو کښ بے دَ اینځلو نه خوړل څکل مکروه دي - هاں که په څه ذریعه معلومیږي چه دا ناپاک دي - نو دَ کومے پورے چه ئے ونه اینځي - خوړل څکل پکښې ناجایز دي - داونګ که په څه ذریعه معلومیږي چه دَ کافر پرتونږ به پیلمازه وي - نو موږ کوله پکښې جایز نه دي دَ کومے پورے چه ئے ونه اینځي - او که پیلمازوالے ئے نه معلومیږي - هم پکښې موږ مکروه دے - وُدے اینځي -

**مسئله :-** که غوښه یا انګورے یا دَ خوراک بل داسے شے سخا شه - او بد بویه شه - خوړل ئے جایز نه دي - په دے وجه نه چه نجس دے - بلکه په دے وجه چه نقصانی دے - او که پئے وُو - یا بل داسے شے وُو - غیر نقصانی نو خیر دے -

**مسئله :-** په میوه کښ چه چینجي وي - هغه پاک دے خو خوړل ئے جایز نه دي - چه ساپکښ ګکیدلے وي - او که دَ یقین دَ غالب ګمان په طور ورته معلومه نه وه - چه مثلاً په دے اینځرو یا تانګوانو کښ چینجي شته - او هغه ئے او خوایه خیر دے -

**مسئله :-** مُشک پاک دي - او حلال دي - داړنګ دَ هغے نافه یعنے غوټه هم پاکه ده -

**مسئله :-** په حالت دَ خوب کښ چه دَ بنده دَ خولے نه لاړے ځي - هغه پاکے دي - په دے سره څه شے نه پلیتیږي - او دَ مړي دَ خولے نه که لاړے لاړے - نو دائي چه هغه نجسے دي -

**مسئله :-** دَ مار پوست چه ایستلے ئے وي پاک دے - او غرمن ئے ناپاکه ده -

**مسئله :-** که دَ منګک غول دَ دانو سره چرته دُوړه کړے شو - خو اثر ئے ظاهر نه شه نو دا معاف دي - ځکه چه عموماً دَ دے نه بچ کیدل ګران دي -

**مسئله :-** نجاست چه وسیزے شي - دَ هغې لوږے پاک دے - لوکه دَ لوږي نه ئے څه شے جوړ کړے شه - هغه به هم پاک وي - لکه نوشادر شو - وائي چه دا دَ نجاست دَ لوګی نه رغیږي -

**مسئله :-** دَ لویو بولو نه چه بخار او چتیږي - که هغه په جامه وغیره ولګیږي نو داپه

---

له هنديه ۱۲ ـ ٢ه درر وشامي ۱۲ ـ ٣ه بذل المجهود وشامي ۱۲ ـ ٤ه شرح التنوير ۱۲ ـ ٥ه عالمگيري ۱۲ ـ ٦ه كبيري ۱۲
٧ه محمد ۱۲ ـ ٨ه بهجة وچه ۱۲

نه پلیتیږی - دارنګ که دَ سپیاکو دوړه پې ولګیږه - هم نه بیلمانزه کیږی - چه اثر دَ نجاست نه وی ظاهر شوے - او که دَ سپیاکو لوګے په دوړی وغیره ولګیږ - نو خیر دے - په دے سره هم په پاکوالی کښی څه فرق نه راځی -

مسئله[۱] :- که سپی په دَړو کښی خوله واچوله - نو په کوم برابر چه ئے خوله اچولے ده - هغه دے ئے اوباسی - یعنے دَ هغه جوته دے ئے بالکل لرے کی - باقی دے سنبال کی - پاک دی =

مسئله[۲] :- صحیح خبره داده چه سپے په خپله پلیت نه دے - او لاړے ئے پلیتے دی - نو که دَ چا په بدن یا په جامو باندے ولګیږه - په دے سره هغه نه بیلمانزه کیږی برابره خبره ده - چه دَ سپی بدن وچ وی - او که لوند - او که سپے لوند وَ - او ځان ئے ښنډ واهه او دارے ئے په چا ولګیدے - دا هم بیلمانزه نه دی - هاں که دَ سپی په بدن څه پلیتی لګیدلے وه - بیا بله خبره ده -

مسئله[۳] :- منی - مذی - ودی - وینه دَ حیض او دَ نفاس او دَ استحاضے دا ټول نجاست غلیظه دی -

مسئله[۴] :- که په زړوکی یا په بدن ئے منی لګیدلے وه - او لمده وه - نو بے دَ اینځلو نه ئے پاکوالے نه راځی - او که وچه شوے وه - نو چه ښه ئے وګروی - یا ئے ښه اومږی چه لوی شی - نو پاک شه - لیکن که حشفه په وړو بولو سره ناپاکه شوے وه بیا ئے استنجا په اوبو نه وه کړے - او دا منی تے وتے او وچه شوے وه - دا هم بے دَ اینځلو نه نه پاکیږی -

مسئله[۵] :- که په بدن یا په زړوکی څه پلیتی ولګیږه - نو برابره خبره ده - چه جسم لرونکی وی - او که نه - هغه په ګرولو سره نه پاکیږی - بلکه اینځل ئے ضروری دی - هاں که منی پے لګیدلے او وچه شوے وه - لکه چه مخکښی بیان شو - بیا بله خبره ده -

مسئله[۶] :- که غسل ئے ښه کړے وَ - بیائے په حشفه دَ منی څه سپینوالے ولید نو خیر دے - په پاکوالی کښی ئے څه فرق نه راځی - خو ښه صفائی ښه ده -

دَ دباغت بیان

مسئله[۷] :- کومه څرمن چه قابل دَ دباغت وی - دَ هر حیوان چه وی - هغه چه دباغت کړے شی - نو په دے سره پاکه شوه - سوا دَ خنزیر دَ څرمنے

---

[۱] شامی ۱۲ [۲] کبیری وشامی ۱۲ [۳] شرح التنویر ۱۲ [۴] درودرد ۱۲ [۵] شرح التنویر ۱۲
[۶] مسائل هذا الباب کلها ماخوذة من شرح التنویر ورد المحتار ۱۲

نه - ځکه چه دے نجس العین دے - یعنے ذات ئے پلیت دے - او سوا د انسان د څرمنے نه ځکه چه په ده کښې شرافت دے - نو څرمن ئے رنګول نه دی پکار - او که د انسان څرمن په رنګولو سره هم پاکه شوه - نو استعمال ئے حرام دے -

**مسئله** :- منګک او دړوکے مارچه وینه لرونکے وی - د دی څرمن په دباغت سره نه پاکیږی - ځکه چه قابل د دباغت نه ده -

**مسئله** :- دکوم حیوان څرمن چه په دباغت سره پاکیږی - که هغه با قاعده ذبح کړے شه - نو په دے ذبح سره ئے هم څرمن پاکه شوه - لیکن دومره خبره ده چه هغه که داسے حیوان وو - چه غوښه ئے حرامه وه - لکه منزرے ګیدړ - شادو وغیره - نو په ذبح کولو سره ئے څرمن خو پاکیږی - غوښه ئے نه پاکیږی - او خوړل ئے جائز نه دی - او تفصیل د دے مسئلے دا دے چه حیوان که داسے حیوان وُ چه غوښه ئے حلاله وه - نو په ذبح کولو سره ئے څرمن او غوښه دواړه پاکیږی - او که غوښه ئے حلاله نه وه - نو که نجس العین وُ - لکه بدلیوه - نو په ذبح کولو سره ئے هیڅ شے نه پاکیږی - او که نجس العین نه وُ - نو که څرمن ئے قابل د دباغت نه وه - لکه منګک وغیره نو هم ئے دا حکم دے - چه نه ئے څرمن پاکیږی او نه ئے غوښه - او که څرمن ئے قابل د دباغت وه - نو په ذبح کولو سره ئے څرمن پاکه شوه - او غوښه ئے نه پاکیږی - او د انسان حکم په دے کښې د شرافت په وجه داسے دے لکه زبن لیو -

**مسئله** :- کومه څرمن چه د کافرانو د وطن نه راځی - که چرے معلومه وی چه د دے دباغت په پاک شی سره شوے دے - نو پاکه ده - او که معلومه وی - چه په پلیت څیز سره شوے دے نو بیا مازه ده - مونځ پے نه کیږی - او پورے چه ئے ونه اینځی - او که معلوم ورته هیڅ نه وُ - بلکه شک ئے وُ - نو غوره دا ده چه وُ دِ اینځی -

**مسئله** :- بے د خنزیرنه بل هر حیوان چه وی د هغه وښته - ښکر - اړوکے - غابښونه پاک دی - که په اوبو کښې وغورزیدل - او به پے نه خرابیږی - لیکن که په اړوکی یا په غابښونو وغیره د دغه مردار حیوان څه غوړوالے لګیدلے وُ - بیا نجس دے - بیا ئے اوبه به پے ناپاکے شی -

**مسئله** :- د انسان پریکړی شوی وښته او اړوکے هم پاک دی - لیکن د هغے

---

له د بعضو کښې اختلاف دے ۱۲ کے دلته ونه مراد دا دے چه نه جاری وی او نه د جاری په حکم کښې ۱۲ منه

نه کارا حنستل جائز نه دی - په عزت سره دے چرته خخ کی -

**مسئله** :- که دَ انسان دَ شرمګاه نه یا دَ غوږ نه څه څکوه لېږدا وبو ته ولو بیده - او نغفه کم نه کم دَ پوره نوک همره وه - نو په دے سره اوبه خرابیږی - او که څه لږ پوستکے یا پټ ورته ولوید - په دے هم څه نه کیږی - ځکه چه داپاک دے -

**مسئله** :- دَ انسان کوم ویښته چه دَ ویښته راوښکلی شوی وی - دَ هغے ویښته ناپاک دی - په کومو پورے چه دَ بدن غوړوالے وغیره لګیدلے - لیکن دَ څکنئ مسئلے نه معلومیږی چه ویښته که دومره وو - چه دَ ویښتو غوړوالے دَ پوره نوک مقدار ته نه رسیدا - او لږ داوبو ته ارتاؤ شه - نو اوبه پے نه خرابیږی - نو فکر ؤکه -

دَ اودس ماتی آداب

**مسئله** :- دَ نور او دَ سپوږمئ مخ کوږی ته مخامخ واړه بول اولوئ بول کول ښکار نه دی - دارنګ په اوبو کښ او دَ ونے او دَ حوض او دَ کوهی وغیره په غاړه دے هم نه کوی - هاں که ضرورت ؤ - او مجبوری وه - مثلاً سړے په کشتئ کښ یا دَ اوبو په جهاز کښ روان ؤ - بیا خیر دے - دَ کوے ونے دَ سوری نه چه خلق جائزه فائده اخلی - هلته - او کوم ځائے چه خلق په زی کښ عنرمونه ترو دیږی هلته - او جمات ته نژدے او په لاره کښ - او دَ لارے په غاړه - او په مقبره کښ - او دَ کوم اړخ نه چه بیبلئ وی هغه اړخ نه - او دَ منګک - دَ مار - دمیکو په سوړه کښ او دَ خاروو دَ څمنګه - او کوم چه دَ خلقو دَ ناستے ولاړے ځائ دی هلته - او دَ میوه دارے ونے - او دَ ګلدار بوټی دَ لاندے دے هم واړه بول اولوئ بول نه کوی -

**مسئله** :- په لوړ جور ځائے کښ دِ خخ په پورته واړه بول نه کوی - ځکه چه دارے به پے ولګی - او متیازے به پے واپس راشی -

**مسئله** :- قبلے طرف ته واړه بول او لوئے بول کول مکروه تحریمی دی - دارنګ که بنځے قبلے طرف ته بچے دَ متیازو یا دَ غلو دَ پاره کیناؤ - دا هم مکروه دی -

**فائده** :- قبلے ته خپے غزول مکروه تحریمی دی - دَ لوے خپے هم دا حکم دے - هاں که عذر ؤ - یا ئے هیر ؤ - نو خیر دے - دارنګ قرآن شریف ته - او دَ تفسیر وحدیث وغیره کتابونو ته خپے غزول هم منع دی - هاں که دا اوچت دَو او دَ خپے محاذات یعنی مخامخ واوړے سره نه وی - او په عرف کښ ورته محاذات نه ویلے کیږی - بیا خیر دے - لیکن احتیاط ښه دے -

**مسئله** :- دَ واړه بولو او لوئ بولو په وخت کښ دے خبرے نه کوی - او بے دَ عذر

---

۱؎ کلها ماخوذة من الدر المختار ورد المحتار والغنیه ۱۲

نه دے تو خیکی نه - او بے دَ ضرورت نه دے غاړه هم نه تازه کوی - آیت او حدیث - او بل متبرک شے دِ نه لولی - بے دَ ضرورت نه دے په ولاړه، یا په ملاستے یا بالکل په لغړه هم نه کوی - او په ښی لاس دِ اودس هم نه پاکه وی - البته که کس لاس ئے معذور وُ - بیا خیر دے - په کوم څیز چه آیت یا حدیث یا دَ خدائے پاک نوم یا بل متبرک شے لیک وی - هغه دے دَ اودس ماتو لو په وخت کښ دَ ځان سره نه ساتی - لیکن که هغه په څه ټوکی وغیره کښ پټ وُ - نو خیر دے -

**مسئله** :- څوک چه اودس ماتول غواړی - هغه له پکار دی چه سر تور سرنه ورځی - بلکه په سر دے څه واچوی - که په کوټه وغیره ئے دَ خدائے پاک نوم یا بل متبرک شے لیک وُ - نو هغه دے اوباسی - او کوم وخت چه دَ اودس ماتی ځائے ته ورننوځی دَ هغے نه مخکښ دے بسم الله اووائی او بیا دا دُعا اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَ الْخَبَائِثِ بیا دے اول کسه خپه ورداننه کړی - وروستو ښئ خپه - او کوم وخت چه کیناستیدو ته نژدے شوے نه وی - په ولاړه دے ځان نه ښکاره کوی - بیا دے خپل عورت ته هم نه ګوری - او څه چه تے وځی - هغے ته دِ هم بے فائیده نه ګوری - او توکی دے پکښ هم نه - او که په دغه حالت کښ اوپرنجیږی - اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ دے په زړه کښ اووائی - په ژبه دے نه وائی - او دَ ځان سره دے بے نه کوی بے ضرورته دے ډیر ساعت نه لګوی - آسمان ته دے سرنه اوچتوی - خو په حیا کښ دے ورکاری - پس دَ فراغت نه دے په لوټو وغیره اودس پاک کی - او چه پوره ډدر بیدے نه وی - دَ هغے نه مخکښ دے ځان پټ کی - او دَ هغه ځائے نه چه راوځی نو مخکښ دے ښئ خپه اوباسی او دا دُعا دے لولی - غُفْرَانَكَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ اَذْهَبَ عَنِّیْ مَا یُؤْذِیْنِیْ وَ اَمْسَكَ عَلَیَّ مَا یَنْفَعُنِیْ - بیا دے اِسْتِبْرَاء وکی استبرا داده - چه سړے دَ ورو بولو نه پس دَ قطرے بندیدلو پورے اودس او چوی او یو څو قدمه راخلی - یا او ټوخیږی - یا په کسه ډډه پریوځی مثلاً - او دَ خلقو طبیعتونه مختلف وی - دَ چا صفائی زر کیږی - دَ چا پس - نو کوم وخت چه ورته معلومه شی چه قطره بنده شوه او صفائی وشوه - هله دے په اوبو استنجا کوی - او په دے باب کښ دَ ښځے حکم په شان دَ حکم دَ سړی دے - خو دومره خبره ده - چه په ښځه استبراء نشته بلکه هغه چه دَ بولو نه فارغه شی - لږ ساعت دے صبر وکی - بیا دے په لوټه ځان پاک کی - بس دا پوره ده - وس په اوبو اِستنجا کولے شی -

**مسئله** :- په دے څیزونو اودس اوچول او پاکول پکار نه دی - په څینې منعه دی
او په څینې مکروه - اوهغه - دَ خوراک شے - وچ خرشنه - او دارنګ پلیت شے - او په کومه
کنه چه یوځل اودس پاک کړے شوے وی - دَ هغے په پلیته غاړه - پخه خښته - کودرے
شیشه - سکاره - وسپنه - زر وغیره - او کوم څیزونه چه دَ څاروو دَ خوراک دی - لکه
واخه - بوس وغیره - او کوم شے چه قیمت لرونکے وی - او پس دَ اینځلو نه ئے په قیمت کښې
فرق راځی - لکه ریښمین ټوکے وغیره - او دارنګ دَ انسان اجزاء - لکه ویښته هډوکے
غوښه وغیره - او دَ جمات بروزه - خس وخاشاک وغیره - او دَ ونو پاڼے او کاغذ ساده
وی - او که لیکلے - او دَ زمزم اوبه - او کوم مال چه دبل ملکیت وی - په هغے سره بے دَ
مالک دَ اجازت نه - غرض دا چه کوم شے دَ انسان یا دَ څاروو دَ نفع وی - یا په صفائی نه
کیږی - په هغے دے اودس نه وچوی - لیکن که دا ئے وکړه - او صفائی راغله - نو
وشوه - خو دَ کراهت نه نه وځی - او ثواب دَ استنجاء ئے ونشه -

**مسئله** :- لوټه - خاورے - کنه - اوبه - بے قیمته کپړه - او هر هغه شے چه
پاک وی - او صفائی پے کیدے شی - او ډیر قدر و قیمت ئے نه وی - په دے ټولو سره
اودس اوچول او پاکول جائز دی - هیڅ کراهت پکښې نشته -

**مسئله** :- په لوټه یا په کنه وغیره دَ لوئے استنجا طریقه څینې عالمانو دا خوښلے
ده - چه دَ ګرمۍ په موسم کښې دے سړے اوّله لوټه دَ مخې نه شا غاړے ته راکاږی -
او دویمه دَ شا نه مخے ته - او دریمه بیا دَ مخې نه شا ته - او دَ ژمی په موسم کښې دے اوله
او دریمه دَ شا نه مخے ته - او دویمه دَ مخې نه شا ته بوځی - خو مسنونه خبره صرف دومره
ده - چه صفائی ښه حاصله شی - په هره طریقه چه وی - او په هر څو لوټو چه وی -
لیکن غوره داده چه تاکه وی

دَ استنجا بیان

**مسئله** :- کومه پلیتی چه دَ ورو بولو یا دَ لویو بولو دَ ځائے نه وځی -
دَ هغے نه استنجا کول سنت دی - نو که صرف واړه بول ئے وکړه - وړه استنجا به کوی
او چار اندام - او که لوئے بول ئے هم وکړه - لویه استنجا به هم کوی - او په یوائے باد و
تلو سره استنجا نشته - بلکه صرف چار اندام دے -

**مسئله** :- په لوټه وغیره چه استنجا وکی - د دے نه بعد په اوبو استنجا کول
هم سنت دی - لیکن کوم چه مخرج دے - یعنے دَ پلیتی دَ وتلو خاص ځائے دے - که پلیتی دَ

---

له در مختار وشامی وکبیری ۱۲

هغه خوا و شا ته خوره شوه - او خور واله ئے ډیوه شرعی روپئ نه زیات وُ - نو اینځل ئے ضروری دی - مونځ ورسره نه کیږی - او که پلیتی د مخرج نه دے خوا هغه خوا نه وه تکیدلے نو چه صرف په لوټه وغیره استنجا وکی - کافی ده - که په اوبوئ ونکړه - خو چار انداما ئے وکه - نو مونځ ئے کیږی - لیکن د سنت نه خلاف ده - هاں که اوبه نه وے - یا که وے - یا بل ضرورت وُ - بیا خیر دے -

**مسئله** :- که پلیتی د مخرج نه خوره شوے وه - نو وس چه به د روپئ د مقدار اندازه کیږی - د مخرج حصه به ورسره هم حسابیږی - او که نه - په دے کبنی اختلاف دے - شیخینؒ وائی چه نه - او امام محمد صاحبؒ وائی چه وُ - او په دے کبنی احتیاط دے -

**مسئله** :- په اوبو چه لوټه استنجا کوی - طریقه ئے داده - چه د قبلے بنی طرف نه کینی - یعنے قبلے ته دے نه مخ کوی - نه شا - ځکه چه مکروه دی - مینه دے بسم الله او وائی - خو د ځان لغړولو نه مخکښی - بیا د اول دواړه لاسونه د مړوند و نو پورے درے ځله وا ینځی - بیا دے وره استنجا وکی - بیا لویه استنجا - د لوئ استنجا په وخت کبنی دے ځان ښه سست کی - په ښی لاس دے اوبه اچوی - او په گس دے مږی - او چه زړه ئے اووے چه صفائی وشوه - نو بس - او که سړے شکی وُ - نو چه درے ځله یا او و ځله ئے وا ینځی پوره ده - شک دے نه کوی -

**مسئله** :- د روژے په حالت کبنی چه استنجا کوی - ډیره زیاته مبالغه دے نه کوی - او را نغوله وی دے - هله چه په زړوکی وغیره ئے وچه کی - داسے نه چه اوبه ئے کیږی ته ننه لاړے شی - او روژه ئے ماته شی -

**مسئله** :- که د استنجا د پاره د خلقو د نظرونه پناه شه ځائے نه وه - او بے پردگی ئے کیده نو که په اوبو استنجا نه کوی خیر دے - په لوټه وغیره چه ئے ځان پاک کړے هغه پوره ده -

**مسئله** :- په حدیث شریف کبنی راغلی دی " چه څوک د خوب را پاسی نو د کوے پورے چه لاس ونه اینځی - په اوبو کبنی دے نه ښکته کوی - ځکه چه معلومه نه ده په خوب کبنی ئے لاس کوم کوم ځائے ته رسیدلے وُ " ختم شه مضمون د حدیث - نو که اوبه په وړوکی لوښی کبنی وے - لکه کوزه وغیره - نو کوزه دے په گس لاس وُ نیسی - او په ښی لاس دے ئے را واړه وی - او درے ځله دے د مړونده پورے وا ینځی - بیا دے په ښی لاس و نیسی په گس لاس دے را واړه وی - دا دے هم درے ځله د مړونده پورے

وانیځئ - اوکه لوبه په لوښي کښې وي - لکه غټه چاټۍ یا غټه دیګ - وغیره
نو په ګلاس یا په پیالۍ وغیره دې تې راوکاګي - خو کوشش دې په اوبو کښې نه ښکته
کوي - اوکه د اوبو راایستلو ګلاس وغیره ورسره هیڅ نه وُ - او په کوم لوښي کښې چې
اوبه وي - هغه ئې راپورته هم نشي - نو د ګس لاس د ګوتو په چونګ دې تې اوبه
راواخلي - او کوشش دې کوي - چې ګوتې ئې په اوبو کښې د ضرورت نه زیاتې ښکته
نه شي - چې اوبه راواخلي - ښې لاس دې پې وینځئ - بیا دې ښې لاس په اوبو کښې
ښکته کي - اوبه دې پې راواخلي - ګس لاس دې پې وانیځئ - خو دا طریقه هله ده - که
چرې معلومه ورنه نه وه - چې لاسونه پلیمازه دي - اوکه معلومه وه - نو بیا دې په
اوبو کښې ګوتې هم نه ښکته کوي - بل چاته دې اووائي - چې هغه تې اوبه په چونګ
راواخلي - او دده په لاسونو ئې واچوي او که بل څوک وُنه - یا وُ خو د هغه لاس هم پاک
نه وو - نو پاک رومال وغیره دې اوبو ته ښکته کي - او بیا وُ دې باسي - د رومال په
هغه اوبو دې مینځه ښې لاس ووینځئ - بیا دې په ښې لاس اوبه راوباسي - او کار
دې تې واخلي - غرض دا دې چې اوبه دې په مناسبه طریقه راخلي -